# د کتاب پېژندنه

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | سیاسي عینکي |
| لیکوال | : | عبدالنافع همت |
| د چاپ کال | : | ۱۳۸۸ش |
| د پښتنې طرحه | : | هژبر شینواری |
| برېښنالیک | : | an_himmat@yahoo.com |
| ګرځنده ټلیفون: | : | ۰۰۹۳۷۰۸۱۹۸۴۵۱ |
| انلاین چاري | : | مختار احمد احسان - د لراوبر ډاټ کام برېښنایي کتابتون |

www.Larawbar.com

# اهداء:

دا کتاب هر هغه چا ته اهداء کوم چي
د سولي لپاره مبارزه کوي.

عبدالنافع همت

# د کتاب فهرست

**ګڼه** **مخونه**

# عبدالنافع همت او د هغه طنزونه

په افغانستان کي په (۱۳۴۷) لمریز کال د طنز او ټوکو لومړنۍ جریدې (ترجمان) په خپرونو پیل وکړ چي د امتیاز څښتن یې اروا ښاد ډاکټر عبدالرحیم نوین او مسئول چلوونکی یې استاد علي اصغر بشیر و. دې خپلواکي او ملي جریدې چي په رښتیا یې د مظلومو افغانانو د دردونو او هیلو ترجماني کوله، په لږ وخت کي ډېر طنز لیکوال پر ځان راټول کړل.

د خلکو د حقوقو ساتنه، د خلکو هوسا ژوند، بې سوادي، بې وزلي او د ټولنیزو خدمتونو نشتوالی د ترجمان جریدې عمده موضوعګاني وې چي په دې ډول یې په افغاني ټولنه کي د ظالمانو، بډې اخیستونکو، قاچاق وړونکو، مفت خورو، سود خوړونکو او چالبازانو پر وړاندي ښکاره مورچل نیولی و. ترجمان پر دې سربېره د ځوانو ادبي څېرو، لیکوالو، شاعرانو او طنز لیکوالو د روزني مکتب هم و چي نوموړې جریده د (۱۳۴۷) لمریز کال د وري په میاشت کي پیل او د (۱۳۵۲) لمریز کال د چنګاښ تر میاشتي پوري یې دوام وکړ. ددې اخبار په هره ګڼه کي به د هیواد په ملي ژبه پښتو هم طنزونه خپرېدل چي خوږ ژبي لیکوال عبدالاحد وحید به لیکل.

په پنځوسمه لسیزه کي د طنز لیکني بهیر ورو او ټکنی سو، خو په شپېتمه لسیزه کي یې بیرته نوې سا واخیسته چي په دغه بهیر کي د اروا ښاد منان ملګري او کاتب پاڅون نومونه یادولای سو.

په دوو وروستیو لسیزو کي له نېکه مرغه طنز ډېره وده کړې ده. ماته چي د کډوالۍ په ژوند کي کوم اخبارونه او مجلې په لاس راغلي دي نو د نویو طنز لیکوالو له نومونو سره اشنا سوی یم چي ځیني یې په هیواد کي او ځیني یې له هیواده دباندي ژوند کوي.

کله چي زه د (۱۳۸۷) لمریز کال په پای کي تر اوږدې کډوالۍ وروسته خپل هیواد ته راستون سوم نو طبعاً د خپل ذوق او لېوالتیا له مخي لومړی د طنز لیکوالو او د هغوی د اثارو په لټه کي سوم چي له نېکه مرغه ډېر ژر مي د طنز په ډګر کي له یوې نوي څېرې سره وپېژندل.

د دې لیکوال یوه طنزي مجموعه مخکي چاپ سوې او هغه مهال یې ستا سي په لاس کي د دوهمي مجموعې لپاره چمتووالی نیوه. خبره به ډېره نه اوږدوم، له عبدالنافع همت سره مي ولیدل. په لومړۍ کتنه کي مو خبري ښې اوږدې سوې، د بحث اوږدېدو سبب دا و چي همت صاحب په ډېره لېوالتیا سره غوښتل چي د طنز په باب هم خپله یو څه وو ایي او هم یې زما څخه واوري. ما داسي احساس کړه چي دی هڅاند او پلټونکی لیکوال دی چي غواړي د طنز د ځانګړتیاوو او تیورۍ په باب په لږ وخت کي ډېر څه زده کړي.

نننی طنز لیکوال اکثره پاروډي (Parody) او ژورنالستیک طنزونه لیکي خو همت صاحب ددوی بر عکس له طنزي داستانو سره ډېره مینه لري. ما چي وکتل نو نه یوازي دا چي د همت صاحب د رنګ او قیافې په لیدلو سړي ته ډېر ژر د ترکیبي نامتو طنز لیکوال عزیز نسین وریاد ېږي، بلکي د طنز لیکلو میتود یې هم هغه ته ډېر ورته دی.

د همت صاحب په لومړۍ او دوهمه مجموعه کي تر ډېره بریده سیاسي طنزونه لیدل کېږي. د ده سیاسي طنزونه تونـد او بې پروا دي چي د خورا زړه ورو او ښکاره بریدونو څرک پکښې لیدل کېږي.

دی یوازي پر داخلي سیاستوالو برید نه کوي، بلکي کله چي په دې پوهېدلی چي د علتونو ریښـه د هیـواد تـر پولـو دباندي ده، نو د هغه د کاکا، ماما، خاله او د ژیړو وېښتانو او شنو سترګو پر دایي باندي یې هم سترګي نـه دي پټـې کړي او ښه ټینګي نوکاري یې ورکړي دي. دی موږ ته دا راښیي چي دا تر مور مهربانه دایي چي موږ ته په کاچوغه په خوله کي عسل راکوي، هره شیبه دې ته هم چمتو ده چي که موږ لږ تندی تریو کړو، نـو د همـدې کـاچوغي پـه لاسـتي به مو سترګي راوباسي.

همت صاحب په دې ډېر ښه پوهېږي چي د یوه طنزي داستان سرلیک څومره ارزښت لري.

ده په خپله لومړۍ مجموعه کي هم ډېر له تلوسې ډک سرلیکونه ټاکلي دي، لکه سپي څنګه مړالونـه وګټـل او داسي نور. په دې مجموعه کي یې هم څو سرلیکونه ډېر له تلوسې ډک او پـه زړه پـوري دي،لکـه اخیـر زه هـم پـه خپـل نوبـت ولسمشر سوم، باز سازي، که باد سازي؟ اوس اصلي خبري تـه راځـم، لېـونی څنګـه د ناټو قوماندان سـو؟ سیاسـي عینکې، بیا به بله ورځ درته ووایم، کاشکي خو د وزیر صاحب وطندار وای او داسي نور.

په داستان کي په عام ډول او په طنز کي په خاص ډول په زړه پوري، پاروونکي او له تلوسې ډک سرلیک لوستونکي دې ته اړباسي چي طنز تر پایه پوري ولولي. ښه سرلیک هغه دی چي نه ډېر ګونګ او نه داسي وي چي د طنز نتیجـه څرګنده او لوستونکی مخکي له مخکي په ټوله طنز پوه سي.

همت صاحب په خپلو طنزونو کي له ډېرو ښو او بریالیو تکتیکونو څخه کار اخیستی، لکه مبالغه، تناقض، تضـاد، آیروني **(Irony)** سوال او ځواب، طعنه یا **(Sarcasm)** له کلیماتو سره لوبې، تجنیس یا **(Pun)** او داسي نـورو لفظي صنایعو څخه یې ډېره ماهرانه استفاده کړې ده.

په خبرو کي منطقي لاره نه ده ځني ورکـه سوې، د بېلګي پـه ډول پـه دې جمله کي چي د تجنیس صـنعت یې پـه کـار اچولی په ډېر ماهرانه ډول یې د تحقیر او پېغور له صنعت څخه هم ډېر ښـه کـار اخیسـتی دی: (لوېشـتکی اسـلم تـر پرونه پوري پنچرمېن و، خو دا چي د رئیس صاحب د خالـه زوی دی، اوس چیـرمین یـاني زمـوږ عمـومي مـدیر دی. د همت صاحب د طنزونو موضوعات زموږ د نننۍ ټولني عمومي، عیني او لویي ستونزي دي. حسـاس او بادرکـه طنـز لیکوال د خپل رسالت له مخي بې له دې چي د یوه معلوم شخص نوم یاد کړي، تل په ټولنه کي ناخوالو ته اشاره کوي چي همت صاحب خپل دغه رسالت په پوره ایمانداری سره ادا کړی دی.

تر دې ځایه خو مو د همت صاحب پر هغو تکنیکونو لږ خبري وکړې چي ده په خپلو طنزونو کي کار ځني اخیسـتی و، خو داسي ښکاري چي دی د طنز لیکلو له ترټولو مهم، ارزښناک او عام تکنیک، یاني آیروني سره ډېره مینه لـري او په خپلو طنزونو کي یې ډېره استفاده ځني کړې ده.

دی په (افغانستان ته د نوبل جایزه ورکول کېږي) نومي طنز کي د هغه کمیسیون غونډه انځوروي چي د څوورزارتونو له باصلاحیته استازیو څخه جوړ سوی دی. د دې غونډې موضوع په افغانستان کي د فقر او بې وزلۍ له منځه وړلـو لپاره د یوه پلان جوړول دي. په دې طنز کي د هیواد یوه عیني ستونزه مطرح کېږي خو هغه د حل لاري چاري چي دغـه

هوښیاران !(د کمیسیون غړي) یې وړاندي کوي، د خندا وړ او احمقانه دي. لیکوال په دې ډول د آیروني له صنعت څخه په استفادې سره لوستونکي په دې پوهوي چي زموږ د مظلوم ملت سرنویشت د داسي خلکو په لاس کي دی چي له عقله یو مخ خلاص او په اصطلاح د دوو خرو وربشي نه سي سره جلا کولای.

ددې طنز په یوه برخه کي د کمیسیون یو غړی داسي وایي: ( که په افغانستان کي تراهګر نه وای نو تراهګري به له کومه کېدای؟ موږ او تاسي ټول پوهېږو چي همدا تراهګر دي چي د تراهګرۍ اور یې بل کړی دی. دغسي که په افغانستان کي غریبان نه وای نو غربت به هم نه وای. زما په فکر ترڅو چي مو په افغانستان کي د غریبانو ریښي له بېخه نه وي ایستلي نو غربت به هم هیڅکله ختم نه سي ).

لیکوال تر دې وروسته د کمیسون د دې معقول حل !؟ یوه بېلګه هم راوړي: ( موږ ولیدل چي کله مو په کابل کي له ښېرپور څخه غریبان وشړل، نو هلته غربت هم ورسره ختم سو، که چېري موږ له دغو غریبانو سره مرستې کولای نو ملینونو ډالرو مرستو ته اړتیا ول، خو اوس یوازي یوه بلډوزر دغه اړتیا پوره کړه، موږ او تاسي خو ټول هلته خپل کورونه لرواو وینو یې چي اوس هلته د غربت هیڅ نښه نسته، بیخي اروپا غوندي ښکاري).

د همت صاحب دا طنز په حقیقت کي د هغو زور واکانو او بې کفایته لوړ پوړو دولتي چارواکو پر مخ یوه کلکه چپلاخه (څپېړه) ده چي په ښېرپور کي یې په ناقانونه ډول ځانو ته ډېر قیمتي او شانداره کورونه جوړ کړي دي.

د همت صاحب په دې طنز کي د حل لاري ته چي سړی ګوري نو څو پېړۍ مخکي د انګلستان نامتو طنز لیکوال (جنتن سویفټ) وریادېږي. ده هغه مهال په لندن کي د فقر له منځه وړلو لپاره وړاندیز کړی و چي باید د غریبانو کوچنیان ښه وروزل سي چي چاغ سي، کله چي ښه چاغ سول نو بیا دې یې غوښي د بډایو خلکو بچیانو ته ورکړل سي چي هغوی یې وخوري.

همت صاحب په خپلو طنزونو کي د خندا عنصر ته هم پوره پام کړی دی، خو زما په اند دی د هورا سي طنز په پرتله جووینالي یا تور طنز ډېر لیکي. دی چي هر څومره غواړي خپل قهر په خندا کي پټ کړي خو بیا هم په طنز کي نغښتي بریدونه او قهر له لوستونکو څخه پټ نه پاته کېږي، لکه په پورتني مثال کي چي وایي، د غربت له منځه وړلو لپاره باید غریبان له منځه ولاړ سي. دی دغه ډول په دې طنز کي د بهرنیو نظامي ځواکونو له خوا د ملکي وګړو بمبارد کولو ته هم اشاره کوي.

په (شاهکار ادبي بهیر) طنز کي د ادبي کره کتني یوه غونډه انځوروي. دا طنز زموږ د اوسنۍ کره کتني پر نیمګړتیاوو لیکل سوی چي خورا ډېر ظریف او باریک ټکي پکښې تر سترګو کېږي. په دې طنز کي د غونډې تاریخ، د غونډې ځای، د کره کتونکو نومونه او تخلصونه په داسي مهارت راوړل سوي چي سړی داسي فکر کوي دا به د یوې ادبي غونډې واقعي ګزارش وي.

څرنګه چي دا لیکنه د همت صاحب پر طنزونو نقد نه، بلکي د (سیاسي عینکې) مجموعې ته یوه لنډه کتنه ده، نو خبره ډېره نه اوږدوم. د طنز په ډګر کي د همت صاحب غوندي نویو څېرو را څرګند ېدل په پښتو ادبیاتو کي یو ډېر لوی زېری دی. د ده طنزونه زموږ په زړونو کي دا هیلي راټوکوي چي انشاءالله دی به زموږ په ملي ژبه پښتو کي د طنز خالي ځای ډک کړي.

حقیقت دا دی چي طنزي ادب په عمومي ډول زموږ په هیواد کي تر اوسه پوري ډېر ځوان دی او موږ خپله هم په دې ډګر کي ډېرې نوي خبرې ګڼل کېږو. خدای دي داسي یوه ورځ راولي چي همت صاحب د طنز په ډګر کي یو نوی غورځنګ پیل کړي او د ادبیاتو دې ارزښتناکي برخې ته نوره هم وده ورکړي.

د همدا سي یوې ورځي په هیله

جلال نوراني، کابل

# سیاسي عینکې او یو څو خبرې

په پښتو ژبه کې هسې هم د شعر په پرتله د نثر برخه خواره ده، په تېره بیا طنزي کیسو ته خو ډېره لږه پاملرنه شوې ده. طنزیه کیسې لکه د ماشومانو ادبیات زموږ لیکوالو ته د ادبي هستونو څنډې ښکاري، د ماشوم ادبیاتو په برخه کې ویل کېږي چې هر لیکوال نه شي کولای ماشومانو ته لیکنې وکړي. زه دا خبره تائیدوم خو داسې لیکوال هم پېژنم چې د ماشومانو لپاره لیکني کولای شي، مګر نه یې لیکي او د مهمو خلکو کار نه ورته ښکاري چې د طنز په برخه کې هم د غسې یوه نظریه واکمنه ده.

یوه ورځ مو په قلم نړیواله ټولنه کې له بهرنیانو سره غونډه لرله، یوه دري ژبي لیکوال چې یوازې یې زما طنزي لیکني لوستي وې، زه یې هغوی ته طنز لیکوال ور وپېژندلم، خو یو بل لیکوال ته زما داډول معرفي ښه نه شوه ښکاره، ورته ویې ویل چې دی یوازې طنز لیکوال نه، بلکې په نورو برخو کې یې هم ښې لیکنې کړې دي. هغه بل لیکوال له ما بخښنه وغوښته، ما ورته وویل چې کاشکې یوازې د طنزي کیسو لیکوال پاتې شوی وای، اوس به مې په دې برخه کې ډېرې بریاوې درلودای.

زموږ په ټولنه او آن ځینو ادبي کړیو کې طنز سرسري او غیر جدي کار معلومېږي، ښایي دا او ځینې نور لاملونه به وي چې موږ په دې برخه کې هم وروسته پاته یو. لکه په نورو برخو کې چې کتابونه خپرېږي د طنز او طنزي کیسو په برخه کې دومره نه خپرېږي او داسې لیکوال چې یوازې د طنز په برخه کې لیکنې کوي یا یې نه لرو او که یې لرو هم نو ډېر لږ دي.

ددغه په زړه پورې کتاب (سیاسي عینکې) لیکوال عبدالنافع همت له هغو ګوتو په شمار لیکوالو څخه دی چې طنزي کیسو ته یې تر ټولو زیاته پاملرنه کړې ده. دی ډرامې او لنډې کیسې هم لیکي خو موږ یې تر ډېره بریده د یوه ښه طنز لیکونکي په توګه پېژنو. تر دې دمخه یې د طنزي کیسو یوه بله په زړه پورې ټولګه (سپي څنګه مړالونه وګټل؟) هم خپره سوې ده. همت صاحب طنز لیکي، ښه یې لیکي او په جرئت یې لیکي. دی لکه څنګه چې په ورځني ژوند کې یو ژمن او صادق انسان دی، همدغه صداقت یې په دغو او نورو طنزونو کې هم ښه لیدلای شو.

د ښاغلي همت صاحب د طنزونو موضوعګاني زیاتره سیاسي دي. په دولتي اداره کې د بیوروکراسۍ، اداري فساد، کورکورانه اطاعت، د خلکو له حالت څخه د دولتي چارواکو ناخبري او ناسم اجراآت د همت صاحب د دغو زیاترو طنزونو موضوعګاني دي. داسې طنز لیکونکي هم شته چې د طنز تېره ځوکه یې هغه چاته متوجه کړې وي چې د حالاتو په بدلون کې هیڅ ونډه نه شي لرلای او آن دا چې دغه موضوعګاني دومره وړې او بې اهمیته دي چې په کار نه ده طنز ورباندې ولیکل شي، خو همت صاحب سره له دې چې په خپله لاره کې ستونزې او خنډونه ویني بیا هم خپله لاره نه پرېږدي او په جرئت او پوره صداقت سره خپله خبره کوي. په ۱۹۴۴ میلادي کال کې د (جورج آرویل) په نوم یوه انګلیسي لیکوال د (حیواناتو فارم) نومی انتقادي کتاب ولیکه، ده په دې کتاب کې په روسیه کې د ستالین په کمونیستي حکومت ملنډې وهلې وې، په کتاب کې یې د ځنګله حکومت خوګانو ته سپارلی، خوګان د حکومت په چارو نه پوهېږي او د فارم له نورو حیواناتو سره ناسم چلند کوي. هغه مهال ډېر لیکوال په دې اند ول چې ددغه کتاب تر خپرولو وروسته به لیکوال ډېر وستایل شي، خو په انګلستان کې ده ته وویل شول چې کتاب یې

د چاپ وړ نه دی، هغه و چي لیکوال د کتاب چاپولو لپاره امریکا ته ولاړ. د لیکوال په اند باید امریکا ددغه کتاب د چاپ تود هرکلی کړی وای، ځکه چي امریکا د روسیې او سټالین پرضد ول، خو برعکس امریکایانو دغه کتاب سانسور کړ. ډېر کلونه وروسته چي د وارسا او ناټو تړونونه منځ ته راغلل، نړۍ دوه پړاکه شوه ددغه کتاب زیات هرکلی وشو، خو لیکوال یې د کتاب د چاپ په لاره کي ډېري ستونزي وګاللې.

ښاغلی همت صاحب دا اړتیا ویني چي باید له فساده ډکه اداره د طنز په ژبه مسخره شي، له ټولو ستونزو او خنډونو سره سره په هوډمنو ګامونو پر خپله لاره روان دی او په جرئت سره یې لیکي. د همت صاحب د طنزونو ژبه ساده، خوږه او روانه ده، ډیالوګونه یې لنډ او د کیسې په پرمختګ کي ښه مرسته کولای شي، لکه دا بېلګه یې:

(اې وروره! دا چټلۍ دي ولي زموږ د کور مخ ته واچولې، دا ځای د چټلیو دی؟

ـ نو چیري یې واچوم؟ بل ځای نسته

ـ ولي پخوا دي چېري اچولې؟

ـ پخوا خو ښاروالي فعاله وه، هره ورځ به یې وړل، اوس هم که ښاروالي بیرته فعاله سوه ستا د کور مخ ته یې نه اچوم، نور څه غواړې؟

ـ ښاروالي نو څه معلومه ده چي څه مهال به فعاله سي؟

ـ دنیا په امید خوړل کېږي، ټول کارونه خو په یوه ورځ نه سمېږي، په دې وطن کي له دېرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.)

دغه راز یې د طنزي کیسو پیل اوږد او ستړی کوونکی نه دی، نه غواړي په پیل کي بې ضرورته اوږدې مقدمې ولیکي، د یوه طنز پیل یې داسي دی: (قاضي مېز وډباوه او د محکمې له حاضرینو څخه یې وغوښتل چي نظم مراعت کړي. بیا یې څارنوال ته وویل چي خپله جوړه کړې دعوه ولولي. څارنوال هم راولاړ سو او دعوه یې داسي پیل کړه).

دا ډول پیل لوستونکي نه په تکلیفوي، د کیسې پېښو ته ژر رسېږي او د کیسې د لوستلو لپاره یې تلوسه زیاتېږي د بېلګې لپاره د دوو نورو طنزونو د پیل جملې را اخلم: (یوه ورځ مې د خپل محصل زوی لیکچر نوټونه ولیدل، ګورم چي کټ مټ هغه زموږ د وختونو لیکچر نوټونه دي. په دې منځ کي پنځوس کاله تېر سوي ول، خو په دې دومره وخت کي یې لږ تو پیر کړی و).

یا:

(د شپې مې ټلویزیون چالان کړ چي یوه خبریال له ولسمشره وپوښتل: د افغانستان د اساسي قانون له تصویب څخه یو کال تېر سو خو ملي سرود لا نه دی جوړ سوی، که د اساسي قانون د هري مادې عملي کول یو کال وخت ونیسي نو اساسي قانون خو (۱۶۲) مادې لري، آیا ټول اساسي قانون به (۱۶۲) کاله وروسته عملي کېږي؟)

پورتنۍ بېلګې د دې ترڅنګ چي د تلوسې د ایجاد قوت لري او دراتلونکو پېښو لپاره لاره هواروي، د پیل په

لومړیو جملو کې هم حرکت لري. هغه طنزي کیسې چې حرکت لري او دا حرکت یې د پیل په جملو کې موجود وي، لوستونکي هیڅکله نه ستړي کوي. همت صاحب دې ټکي ته ښه متوجه دی او نورو دې په ټولو طنزونو کې یې دې موضوع ته پام کړی دی.

زه په پای کې د تکړه لیکوال همت صاحب زړه د ډېرې ستاینې وړ بولم، د دغه کتاب د چاپ مبارکي ورته وایم او د لا زیاتو بریاوو هیله ورته کوم.

په مینه او درنښت

**علم ګل سحر**

**څارندوی مېنه، کابل**

**۲۹ غبرګولی، ۱۳۸۸ لمریز کال**

# لیونی څنګه د ناټو قوماندان سو؟

قاضي مېز ووډباوه او د محکمې له حاضرينو څخه يې وغوښتل چي نظم مراعت کړي. بيا يې څارنوال ته وويل چي خپله جوړه کړې دعوه ولولي. څارنوال هم راولاړ سو او دعوه يې داسي پيل کړه:

د ناټو ځواکونو قوماندان (مايکل) د (ټامسن) زوی چي څلوېښت کاله عمر لري او د امريکا د متحده ايالاتو د نيويارک ايالت اوسېدونکی دی، په لاندي جرمونو تورن دی:

۱ـ د نشې په حالت کي يې موټر چلاوه او د (۱۳۸۷) ش کال د جوزا د مياشتي پر څلورمه نېټه يې د کابل په وزير اکبرخان مېنه کي څلور نفره په موټر وهلي چي دوه نفره يې مړه او دوه نور يې سخت ټپيان کړي دي.

۲- يو ميل ناقانونه توپنچه (تمانچه) او شل کيلو ګرامه پوډر ورسره نيول سوي دي.

۳- د ترافيکو پر مدير کرم خان يې ټکان (ډزي) کړي او د هغه د وژلو هڅه يې کړې ده.

۴- په ښار کي يې له لايسنس پرته موټر چلاوه.

د يادولو وړ ده چي مايکل تر دې مخکي هم جرمي دوسيه لري. مخکي تر دې چي افغانستان ته راسي د امريکا د نيويارک ايالت په تور کلي (Black village) کي يې د غوا وو په يوه فارم کي د ډيوېڼه په نوم يو مزدور په وسپنيز اخور پر سر وهلی او وژلی يې دی چي تر هغه وروسته په يوه قمار خانه کي پټ اوسېده. دغه ډول يې پرو سږکال په بګرام کي يو بې ګناه ملا، چي ملا اسمعيل نومېده، وژلی او په پښو کي يې مېخونه ورټکوهلي دي. زه له محکمې څخه غواړم چي د افغانستان د جزا قانون له (...) مادو سره سم دي مايکل ته د شلو کالو بند سزا ورکړل سي. زما د خبرو د لا سپيناوي لپاره دلته د پېښې دوه عيني شاهدان هم حاضر دي چي يو د کابل ولايت د ترافيکو مدير ډګروال کرم خان او بل د کابل ولايت د پوليسو د شلمي حوزې قوماندان بشير خان دی. محترم قاضي صاحب که اجازه وي نو دوی به د خپلو سترګو ليدلی حال ووايي.

د مايکل مدافع وکيل وويل: مخکي تر دې چي شاهدان خبري وکړي زه دوې پوښتني لرم، يو دا چي، ايا د کرم خان او بشير خان پرته نور شواهد هم سته؟ بل دا چي ايا د وژل سويو خلکو له خپلوانو څخه کوم څوک څارنوالۍ ته عارض سوی دی؟

څارنوال وويل: نه! نه بل شاهد سته او نه د مړو له کورنۍ کوم عارض. بيا قاضي کرم خان ته وويل چي خپلي خبري وکړي. کرم خان رامخ ته سو او و يې ويل: دغرمې يوه بجه وه چي يو موټر په ډېري چټکۍ راغی، زه يې مخ ته ودرېدم چي لاربنوونه ورته وکړم چي دا يو طرفه سړک دی، خو موټر دغسي په چټکۍ راباندي راغی، ما ځان ځني

ګونښه کړ، موټر زما څخه تېر سو او د سړک پر غاړه یې څلور نفره ووهل چي دوه نفره یې ځای پر ځای مړه او دوه نور یې ټپیان کړل. زه د دې لپاره چي موټر و نه تښتي موټر ته ورنژدې سوم، مایکل هڅه وکړه چي وتښتي، په ډېر تلوار یې د موټر مخ راوګرځاوه چي په دې وخت کي یې موټر له دېوال سره ټکر سو او ودرېده. کله چي زه موټر ته ورنژدې سوم نو مایکل له موټره راکښته سو، له جېبه یې تمانچه راوایسته او پر ما یې څو ډزې وکړې، د خدای فضل و زه ځني خطا سوم، په دې وخت کي د پولیسو د شلمي حوزې قوماندان بشیر خان له څو تنو پولیسو سره راغی، مایکل یې ونیو او له ځان سره یې حوزې ته بوت.

تر دې وروسته قاضي له بشیر خان څخه وغوښتل چي خپلي خبري وکړي. بشیر خان را ولاړ سو او خپلي خبرې یې داسي پیل کړې: موږ چي کله د مایکل لاسونه ور وتړل نو له غورهاري پرته یې نوري خبري نه کولې. کله چي مو د ده جېبونه تلاشي کړل نو هیڅ ډول اسناد ورسره نه ول، بیا چي مو یې موټر تلاشي کړ نو شل کیلو ګرامه پوډر هم ورسره ول. لس دقیقې به لا نه وې تېري سوي چي زموږ د امیر له خوا تیلیفون راغی، ویل تاسي د مایکل په نوم د ناټو ځواکونو یو مهم قوماندان نیولی دی، ډېر ژر یې خوشي کړئ او معذرت ځني وغواړئ. موږ هم مایکل خوشي کړ او معذرت مو ځني وغوښت. دی چي تله نو په انګلیسي ژبه یې وویل چي (**Fucking Police**). نه پوهېږم چي دا په انګلیسي ژبه کي کورودانې ته وایي او که بله مانا لري.

وروسته د مایکل مدافع وکیل خپلي خبري داسي پیل کړې: ښاغلي مایکل ته په (**۱۹۹۵**) م کال کي یو عصبي تکلیف پیدا او له همدې امله په ټیکساز ایالت کي یوه لېونتون ته ولېږل سو. هلته تر څو کالو تېرولو وروسته ډاکټرانو د هغه پلار ته وویل چي د مایکل د علاج یوازینۍ لاره دا ده چي دی باید تل خوشاله وساتل سي، یاني هرڅه چي دی کوي او هر څه چي غواړي باید خبره یې پر ځمکه وا نه چول سي، که داسي ونه سي نو علاج یې امکان نه لري. څرنګه چي امریکا داسي یوه ټولنه نه ده چي مایکل دي هر هغه څه پکښې وکړي چي زړه یې غواړي نو علاج یې هم و نه سو. بیا چي کله په (۲۰۰۱) م کال په افغانستان کي د امریکې په مشرۍ د تراهګرۍ ضد مبارزه پیل سوه نو ښاغلی مایکل هم له امریکایي عسکرو سره یو ځای افغانستان ته راغی او وروسته د ناټو د یوې ټولۍ عسکرو قوماندان وټاکل سو.

دا چي مایکل یو طرفه سړک ته موټر ننه ایستلی، ملامت نه دی، ځکه چي پر هغه سړک په انګلیسي ژبه نه و لیکلي چي: (**No Entry**) یاني مه ننوزئ ! مایکل نه پوهېده چي دا یو طرفه سړک دی. بل دا چي په کومه ورځ مایکل موټر ټکروي نو هغه شراب خوړلي او غرق نشه دی، چي د یو بهرني لپاره شراب څښل بد کار نه دی. له کومي ورځي راهیسي چي مایکل افغانستان ته راغلی نو د قانون په نوم له کوم څنډ سره نه و مخ سوی او په امریکا کي هم ورته ویل سوي ول چي له امریکایي قانون پرته د افغانستان هیڅ یو قانون د هغه مخه نه سي نیولای، نو کله چي هغه ته ټرافیکي پولیس لاس ورکوي، دی داسي فکر کوي چي دا کوم تراهګر دی او غواړي چي پر ده ځان مرګی برید

وکړي، نو هغه دی چي وارخطاکېږي، اعصاب يې اوړي او خلک په موټر وهي، پر ډګروال کرم خان يې هم ډزي له همدې خاطره کړي چي ده د تراهګر ګمان پر کړی دی.

څارنوال ولاړ سو او ويې ويل: قاضي صاحب دی درواغ وايي، ايا داممکنه ده چي ناټو دي يو لېوني ته قوماندانې ورکړي او بيا دي هغه افغانستان ته راواستوي؟ مدافع وکيل په خندا وويل: څارنوال صاحب ستا خپله هم اعصاب چندان کار نه کوي. ايا د ناټو هيوادونه لېوني دي چي خپل هوښيار عسکر افغانستان ته راواستوي او له تراهګرو سره په جګړه کي يې قرباني کړي؟

قاضي وپوښتل: د مايکل روغتيا اوس څنګه ده؟ مدافع وکيل ځواب ورکړ: د مايکل روغتيايي حالت ډېر خراب دی، له کومي ورځي راهيسي چي هغه ته لاس ور اچول سوی نو هر افغان چي ويني زړه يې ورته خوړل کېږي او غواړي چي ويې وژني، ډاکټرانو يې ويلي چي که بيا د هغه مخ ته کوم افغان ودرېږي نو کېدای سي چي د پخوا په شان لېونی سي. قاضي وويل: ښه ښه بس يوه سوه. مدافع وکيل پسي زياته کړه: تر کومه ځايه چي د سلاح د جواز خبره ده نو په افغانستان کي بهرنيان اصلاً د سلاح جواز ته اړتيا نه لري. بل داچي څارنوال صاحب د پوډرو خبره هم ياده کړه، اصلاً خبره داده چي ښاغلی مايکل په خپله پوډري دی او څو ورځي وروسته يې په افغانستان کي وظيفه پای ته رسېږي، ده غوښتل چي دغه پوډر له ځان سره امريکا ته يوسي چي هم يې خپله ګوزاره په وسي او هم يو څه پيسې په جوړي کړي. څارنوال صاحب داهم وويل چي مايکل د ډيوېډ په نوم يو امريکايي وژلی دی. دا خبره سمه ده خو په هغه وخت کي د ده اعصاب جوړ نه ول، ځکه نو محکمې هم خوشي کړ. د ډيوېډ تر وژل کېدو وروسته مايکل په يوه قمار خانه کي پټ نه اوسېده، بلکې هماغه د ده د خوښي ځای و، په امريکا کي خو ډيموکراسي ده، هر ځای چي د چا زړه وغواړي نو هلته اوسېدلای سي، پاته سوه د ملا اسمعيل خبره، نو هغه ملا خو القاعده و، سهار وختي به پر يو لوړ ځای ودرېد او په عربي ژبه به يې طالبانو او القاعده وو ته ناري وروهلې چي هغوی به بيا د ناټو مرکزونه په توغنديو ويشتل. د القاعده وو له منځه وړل خو د مايکل وظيفه ده. څارنوال يې په خبرو کي ورولوېد او ويې ويل: دا خبره سمه نه ده، دکلي ټول خلک وايي چي ملا اسماعيل القاعده نه، بلکي د مسجد امام و او پر منبر به يې د سهار اذان کاوه. مدافع وکيل وويل: مايکل څه پوهېده چي دا اذان دی، دی خو په عربي ژبه نه پوهېږي، ده داسي ګمان کړی دی چي په عربي ژبه القاعده وو ته ناري وروهي.

څارنوال وويل: مايکل خو بې له دې چي په دې باب څېړنه وکړي د ملا اسماعيل په پښو کي يې مېخونه ورټکوهلي او بيا يې ويشتلی دی. مدافع وکيل وويل: داچي ملا اسماعيل رښتيا القاعده و او که نه، داپوښتنه بايد له ښاغلي مايکل څخه د هغه قوماندان وکړي، د افغانستان محکمه دا صلاحيت نه لري.

ډګروال کرم خان را ولاړ سو، لاسونه يې پر نامه ونيول او په عاجزۍ يې وويل: قاضي صاحب زه خپلي خبري بيرته اخلم، قسم په خدای چي زه نه وم خبر چي دا د يو بهرني سړي موټر دی، کنه تر اوسه مي نه د کوم بهرني موټر درولی

او نه مي تلاشي کړې دي، ان دا چي که د بهرنیانو د ځینو موټرو په باب مي معلومات هم درلودل چي پوډر پکښې دي، خو بیا مي هم نه دي تالاشي کړي.

ورپسې د پولیسو قوماندان بشیر خان وویل: قاضي صاحب زه هم خپلي خبري بیرته اخلم، زه خبر نه وم چي دا یو خارجي سړی دی، کله چي خبر سوم نو ډېر ژر مي خوشي کړ او معذرت مي ځني وغوښت، ان دا چي خپل پوډر او سلاح مي یې هم بیرته ورکړل.

په دې وخت کي قاضي مېز و ډباوه او له حاضرینو څخه یې وغوښتل چي غلي سي او بیا یې وویل: د دواړو خواوو او شاهدانو د خبرو په رڼا کي محکمه د مایکل په باب داسي پرېکړه کوي:

بهرني نظامیان غیر مسئول او واجب الاحترام دي چي په افغانستان کي نه سي محاکمه کېدای. نو د افغانستان محکمه مایکل خوشي کوي او د هغه یو میل تمانچه او شل کیلو ګرامه پوډر بیرته ورکوي چي د غه اجناس یې مخکي لا ورته سپارل سوي دي. پاته سوه د ښاغلي مایکل د شخصیت د اعادې خبره. د ترافیکو مدیر کرم خان یو بهرنی، یاني مایکل ډارولی او د پولیسو د شلمي حوزې قوماندان بشیر خان بیا د لسو دقیقو لپاره د هغه لاسونه ورتړلي چي په دې ډول یې یو خو د مایکل سپکاوی کړی او بل یې د هغه روغتیا په خطر کي اچولې ده. نو د افغانستان محکمه د دې جرم په بدل کي بشیر خان د اسلم خان زوی او ډګروال کرم خان د نورخان زوی هر یوه ته د شلو کالو بند سزا ورکوي. که چېري مایکل د پخوا په شان لېونی سو نو دوی دواړه به اعدامېږي. دا چي د مایکل د موټر بانټ کړوپ سوی او روغتیایي حالت یې هم خراب سوی نو د دې جرم په مقابل کي به دوی هر یو مایکل ته پنځه ویشت زره ډالره جریمه ورکوي.

# باز سازي، كه باد سازي! ؟

قهرجنو مظاهره چيانو د كابل ښار په څو ځايونو كي اورونه بل كړل او چيغي يې وهلې چي دولت دي هغه والي د قانون منګولو ته وسپاري چي ددوی د مشر د ورور پر موټر يې بريد كړی دی. يو سړی چي لنګوټه يې په غاړه كي ول ول رالوېدلې ول، وويل: دا يوه ستره او نه جبرانېدونكې ضايعه ده، زموږ ګوند او قوم ته په سپكه كتل سوي دي، موږ به خپل غچ خامخا اخلو.

يوه مېرمن چي خپل تور پوړنی يې تر زنه لاندي كلك تړلی و او يوه كاغذي لوحه يې په لاس كي لوړه نيولې ول پر لوحه دا سي ليكلي ول: دولت بايد خامخا دغه والي محاكمه كړي. يو بل سړی چي غاښونه يې چيچل او تر خوله يې ځګونه رابهېدل، چيغه كړه: دا غټه خبره ده، هيڅكله يې نه پرېږدو .

له بلي خوا د بشري حقوقو د خپلواک كميسيون د ټرانسپورټ څانګي وياند وويل چي، په سياست كي برخه اخيستل د هر انسان حق دی او هر څوک حق لري موټر ولري چي په دې اساس پر موټر بريد په حقيقت كي پر هغه شخص بريد دی. موږ په دې اړه څېړنه كړې او دوسيه مو يې څارنوالۍ ته استولې ده. هيله لرو چي څارنوالي به دغه موضوع جدي ونيسي او په دې اړه به اجراات وكړي.

تر مظاهرې لږ شېبه وروسته پوليسو پر سړک ولاړو رېړۍ والاوو پسې سوټې راواخيستل، څو رېړۍ چپه سوې، له سړک څخه دوړي پورته سوې او د وزيرانو د تورو ښيښو موټرونه يو په بل پسې ارګ ته ور وګرځېدل چي د دې پېښي په اړه د كابينې په بېړنۍ غونډه كي برخه واخلي.

د كابينې تر غونډې وروسته د ولسي جرګې يوې ډلي وكيلانو د اعلاميې په خپرولو سره وويل چي په دې اړه يوازي د كابينې بېړنۍ غونډه او د دې كار غندل كفايت نه كوي، بايد يو عملي ګام واخيستل سي، خو د ارګ وياند د ولسي جرګې د وكيلانو دغه تورونه رد كړل او زياته يې كړه چي كابينې د كورنيو چارو د وزير په مشرۍ يو كميسيون جوړ كړی او دنده يې ورته سپارلې چي دغه موضوع وڅېړي او راپور يې د كابينې بلي غونډې ته وړاندي كړي. ان دا چي والي يې دا نن د كميسيون تر څېړنو مخكي له كاره ګوښه كړی دی.

ددغه كميسيون يو غړي، جنرال پنچرمين چي شل كاله يې د پنچرمينۍ دكان درلود او اوس چېرمين ياني د پوليسو د اتلسمي حوزې قوماندان دی وايي چي، دوی د موټر پنچر سوی ټاير په يوه امبولانس كي په ډېر درناوي عدلي طب ته يووړ او هلته تر يو لږ څېړنو وروسته ورته معلومه سوه چي نوموړی ټاير پنچر سوی نه، بلكي په خپله يې هوا وتلې ده.

ددغي پېښې په تړاو د ملي باد سازۍ ګوند مشر وايي چې د موټر له يوه ټاير څخه هوا ايستل پر ټول موټر اغېز کوي او موټر خوښکاره خبره ده چې د هغه د خاوند سياسي ژوند ته تاوان رسوي. دا چې موټر په سياست کې ډېر مهم دی نو خامخا د نومونړي ګوند سياسي فعاليتونه هم له خنډ سره مخ کوي چې په دې ډول په افغانستان کې ډيموکراسۍ ته يوه غټه ضربه ده. زما په اند د يوه سياسي ګوند د موټر له يوه ټاير څخه هوا ايستل په حقيقت کې له ډيموکراسۍ څخه هوا ايستل دي.

له بلې خوا لري کړل سوی والي دغه تورونه نه مني او وايي چې، دی يې يوازي په دې تور له کاره ګوښه کړی چې ولې يې په خپل ولايت کې باد سازۍ ته پاملرنه نه ده کړې، ياني ولې يې د نومونړي موټر پنچري نه ده ور نيولې.

دغه اعتراضونه هغه مهال راپورته سول، کله چې درې ورځې مخکې د يوه سياسي ګوند ويانډ اعلان وکړ چې د دوی د مشر د ورور موټر د والي د دفتر مخ ته پنچر سوی دی. ويانډ دا تور ولګاوه چې د موټر په پنچر کېدو کې والي نېغ په نېغه لاس لري.

د يادوني وړ ده چې تر اوسه پوري د دولت يو عادي چارواکی هم له دې امله له کاره نه دی ګوښه سوی چې ولې يې د باز سازۍ په لار کې غفلت کړی دی، نو دا چې باد سازۍ ته په نه پاملرني سره يو والي بې له دې چې ګناه يې ثابته سي، له کاره ګوښه کېږي، دا سي ښکاري چې باد سازي تر بازسازي ډېره مهمه ده.

# سیاسي عینکې

د ارګ په غولي کې د څرخي الوتکي څرخ لا سم نه و ارام سوی چي ولسمشر له خپلو څو وزیرانو سره په چټکو ګامونو ورپورته سو او الوتکه بیرته والوته. نن د حساب ورکولو د اوونۍ لومړۍ ورځ وه چي هر وزیر د رسنیو له لاري ملت ته د خپل کار کلنی راپور ورکاوه، خو ولسمشر غوښتل چي خپله په ټول افغانستان کي وګرځي او د هر وزیر کار له نږدې وګوري. څرنګه چي امنیت سم نه و، نو ده غوښتل چي په الوتکه کي د هوا له لاري د وزیرانو د کارونو نظارت وکړي.

کله چي الوتکه فضا ته ښه لوړه سوه، ولسمشر وویل چي لومړی به د زراعت وضعیت وګورو. له دې سره سم د کرهنې وزیر له خپله ځایه ولاړ سو، پیلوټ ته یې په غوږ کي یو څه وویل او بیا یې ولسمشر ته وویل: رئیس صاحب پیلوټ ته مي وویل چي د الوتکي ارتفاع لږ کمه کړي چي هر څه ښه شفاف ووینو، ځکه چي د حساب ورکولو اوونۍ ده.

یو څو دقیقې وروسته ولسمشر د الوتکي تر کړکۍ لاندي وکتل او بیا یې د کرهنې وزیر ته وویل: تاسي خو ویل چي د زراعت په برخه کي ډېر کار سوی دی، زه خو دلته له سپېرو دښتو پرته بل هیڅ شی نه وینم. د کرهنې وزیر په خندا ورته وویل: رئیس صاحب مونږ ټولو ته خو هر څه ډېر شفاف او رڼه معلومېږي، دا چي تاسي یې نه وینئ، ټول علت ستاسي په عینکو کي دی، که تاسي زموږ له عینکو څخه ورته وګورئ نو هر څه به ډېر صاف او شفاف ووینئ.

ولسمشر په تعجب وپوښتل: عجیبه ده نو زما په عینکو کي څه عیب دی؟

- صاحب ستاسي عینکي خو یو د افغانستان تخنیک دی او بل نو ډېري پخوانۍ دي چي د هغه وخت د شرایطو او ستاسي د سترګو د نمرې په پام کي نیولو سره جوړي سوي دي، خو زموږ عینکي سیاسي عینکي دي چي خورا عصري او په دوستو هیوادونو کي زموږ د دولت د اوسني سیاست او زموږ د وظیفې په پام کي نیولو سره جوړي سوي دي. په دې عینکو کي د سړي د سترګو دید دومره تېز وي چي د افغانستان په هره سیمه کي د خپلي وظیفې اړوند هر څه لیدای سي.

- دا څه وایې ! ته راکړه چي زه دا ستا عینکي پر سترګو کړم !

- ها صاحب دادي واخلئ !

کله چي ولسمشر عینکي پر سترګو سمولې، نو الوتکه کندز ولایت ته ور سېده. ولسمشر د الوتکي تر کړکۍ د باندي وکتل او بیا یې د کرهنې له وزیر څخه وپوښتل چي دا کوم ولایت دی؟ هغه یې غوږ ته خوله ورنږدې کړه او

ویپ ویل: صاحب دا نیمروز دی. د دې سره سم ولسمشر په زوره چیغه کړه: دا څه وایې؟ نیمروز دا سي تک شین او سمسور سوی دی؟ له دې سره سم یې ددعا په ډول لاسونه پورته کړل او ویپ ویل: خدایه شکر چې ماته دې دومره توان راکړ چې په ډېرو لږو امکاناتو او ډېر لږ وخت کې نیمروز دا سي سمسور کړم. بیا یې وزیرانو ته مخ راواړه او پسې زیاته یې کړه: په رښتیا چې ډېره د تعجب وړ خبره ده، دلته پخوا یوازې ریګ او دوړې بادېدې، اندا چې خلکو یې د څنباک او به نه درلودې. بیا یې د معارف وزیر ته په خندا وویل: یاره دا خو رښتیا چې ښې عینکي دي. ناڅوانانو تاسي ټول چې دا سي عینکي لرئ ماته ولي یوه جوړه نه رانیسئ؟ زه خو تر اوسه پوري هغه پخوانۍ غیر سیاسي عینکي استعمالوم.

د کرهنې وزیر وویل: صاحب ولي یې نه درته رانیسو، موږ چې کله لومړی ورځ دغه عینکي رانیولې، نو ته مو په زړه کې وې. خبره دا ده چې ستا عینکي باید څو ډوله نظر ولري، چې بېلابېلو کارونو ته په بېل بېل نظر وګوري، موږ چې په دغه ډول عینکو پسې هر څومره وکتل پیدا مو نه کړې، بیا موږ په خپل منځ کې سره وویل چې که رئیس صاحب هر وخت غوښتل چې د کوم وزارت کارونه کنټرول کړي نو موږ به خپلې عینکي ورکوو. ولسمشر وخندل او ویپ ویل: بس بس دا هم ښه نظر دی. بیا یې له خپله جېبه قلم راو ایست، په کتابچه کې یې یو څه ولیکل او ویپ ویل: ښه اوس به نو د معارف وضعیت وګورو. ده لا دا خبره نه وه پوره کړې چې د معارف وزیر ولاړ سو، پیلوټ ته یې په غوږ کې یو څه وویل او بیرته راغی د ولسمشر څنګ ته کېښناست. ولسمشر لا تر کړکۍ دباندې نه وه کتلي چې د معارف وزیر خپلې عینکي هغه ته ورکړې، ویل رئیس صاحب ها دادی دا زما عینکي واخلئ او بیا ورته وګورئ. ولسمشر چې لاندې وکتل نو د هرات ولایت د نجونو یوه لیسه یې ولیده، ویل دا کوم ځای دی؟

-صاحب دا د کندهار پنجوایي ولسوالي ده

- ته رښتیا وایې؟

- هو صاحب رښتیا وایم، د کندهار په ټولو ولسوالیو کې د هلکانو او نجونو مکتبونه فعال دي.

- طالبان خو په دروا غو دا اوازې اچوي چې د کندهار ولایت اکثره ولسوالۍ له مرکزونو پرته ددوی په واک کې دي، خو زه دې ته حیران یم چې دا ځیني نړیوالي اداري، په تېره بیا رسنۍ ولې دومره غټ درواغ وایې چې د کندهار ولایت په ولسوالیو کې مکتبونه یو مخ تړل سوي دي. اوس خو دادی موږ او تاسي ټول یې په خپلو سترګو وینو چې په پنجوایي غونډي ځای کې د هلکانو مکتب خو څه کوې چې د نجونو مکتبونه هم فعال دي.

ولسمشر په خپله کتابچه کې یو څه ولیکل او ویپ ویل: ښه اوس به نو د تاریاکو احوال واخلو. په دې وخت کې له نشه یې توکو سره د مبارزې وزیر له خپله ځایه دا سي په چټکۍ او وارخطایۍ ولاړ سو لکه یو لړم چې یې و چیچي. ده هم د نورو دوو وزیرانو په شان پیلوټ ته په غوږ کې یو څه وویل او بیا په منډه راغی د ولسمشر څنګ ته

کښېناست. تر یو څو خبرو وروسته ولسمشر د الوتکي تر کړکۍ لاندي وکتل چي ننګرهار ولایت یې ولید او یې پوښتل: دا کوم ولایت دی؟ څنګ ته ناست وزیر ورته وویل چي رئیس صاحب دا هلمند دی او له دې سره سم یې خپلي عینکي د ولسمشر پر سترګو ورکښېښوولې. ولسمشر بې واره وخندل او ویې ویل: اوهو ماشاء الله دلته خو تاریاک هیڅ نه لیدل کېږي. وزیرصاحب په خندا د ولسمشر غوږ ته خوله ورنږدې کړه او ویې ویل: رئیس صاحب سږکال په ټوله هلمند کي یو بوټی تاریاک هم نه دي کرل سوي، ټولو خلکو غنم کرلي دي. ولسمشر وویل: بس بس چي په هلمند ولایت کي هم تاریاک نه دي کرل سوي، نو زه باور لرم چي په ټول افغانستان کي نه دي کرل سوي. بیا یې لوړ وکتل او ویې ویل: خدایه شکر چي له دې پېغوره خو دي خلاص کړم چي نړیوالو به ویل چي افغانستان د تاریاکو لومړی تولیدوونکی هیواد دی. پیلوټ الوتکه څو واره د غنمو د فصلونو د پاسه په ټیټه ارتفاع کي تېره کړه.

ولسمشر په خندا وویل: یو وخت هلمند ته د غنمو ګدام ویل کېده، اوس زه داسي فکر کوم چي هلمند بیرته هغه پخواني حالت ته راګرځېدلی دی.

په دې وخت کي سوکه سوکه تیاره سوه، ولسمشر وویل چي اوس ماښام سو، د اوبو او برېښنا حالت به هم وګورو، بیا به نو ځو له خیره سره؟ له دې سره سم د اوبو او برېښنا وزیر هم د نورو وزیرانو په شان پیلوټ ته په غوږ کي یو څه وویل او بیا یې ځان د ولسمشر څنګ ته راورساوه. یو څو دقیقې وروسته الوتکه د کابل ښار فضاته ورسېده. په دې وخت کي ولسمشر د الوتکي تر کړکۍ دباندي وکتل، ترڅو چي یې خوله خبرو ته جوړوله نو د اوبو او برېښنا وزیر خپلي عینکي د هغه پر سترګو کړې. له دې سره سم ولسمشر په خوښۍ وپوښتل:

- او هو دلته د برېښنا څومره ډېر څراغونه دي، دا کوم ځای دی؟

- صاحب دا پکتیکا ده.

- دا څه وایې! دا پکتیکا ده؟

- هو صاحب، په ټولو ولایتونو کي مي اول پکتیکا ته برېښنا راوسته، ما ویل د دې ولایت خلک ډېر غریب دي. له خدایه راضي یم چي له کومي ورځي راهیسي دلته برېښنا راغلې نو خلکو ته دومره ډېر کارونه پیدا سوي چي اوس بیخي مزدور نه پیدا کېږي. اندا چي پاکستانیان او ایرانیان دې ولایت ته د کار لپاره راځي. دادی د کار او ټولنیزو چارو وزیر صاحب خپله دلته تشریف لري، ده ته هر څه معلوم دي.

- یاره واقعاً چي دا یو ستر خدمت دی، خو عجیبه ده د پکتیکا مرکز، ښرنه خو پخوا دومره غټ ښار نه و.

- صاحب ښرنه اوس هغه پخوانی کوچنی ښار نه دی، بیخي لکه کابل داسي دی او بل دا چي د پکتیکا ولایت ټولي

ولسوالۍ برېښنا لري، ځکه نو ټول ولایت يو ښار غوندي ښکاري.

ولسمشر په خپله کتابچه کي ژر ژر يو څو کرښې وليکلې او ويې ويل: د نن لپاره همدومره کار بس دی، راځئ چي ځو. بيا يې د خپلي کتابچې پاڼې سره واړولې او د خپلو يادښتونو په لوستلو يې پيل وکړ. په دې وخت کي وزيرانو يو بل ته حيران حيران سره کتل. ولسمشر کتابچه په جېب کي واچوله، غاړه يې تازه کړه او ويې ويل: ما د خپلو وزيرانو په باب د نړيوالو او داخلي رسنيو له لاري، دغه ډول د خلکو له خولې ډېر شکايتونه اورېدلي ول چي دوی د بيت المال پيسې اکثره غلاکوي او يا يې په قيمتي موټرونو، کورونو او خپلو عياشيو لګوي خو زه اوس پوه سوم چي دا ټول تورونه بې ځايه ول. نن ماته معلومه سوه چي تاسي په رښتيا افغانستان ته ډېر ستر خدمتونه کړي دي او له خپل وطن سره د زړه له کومي مينه لرئ، زه وياړم چي ستاسي غوندي وزيران لرم.

# جار قربان د مالیې وزیر تر پلان سم

د وزیرانو دا غونډه د پراختیایي بودجې د تصویب لپاره رابلل سوې وه چي ځینو وزیرانو یو ساعت مخکي لا ځان ورته رارسولی و. ولسمشر ورغوي سره ومښل، د غونډې برخه وال یې ښه تر نظر تېر کړل او ویې ویل: څوک خو به غیر حاضر نه وي؟ د کورنیو چارو وزیر ولاړ سو، لاسونه یې پرنامه ونیول او ویې ویل: صاحب ټول وزیران حاضر دي، پیسې هم عجیبه شی دي، زه خو خپله سهار په خړه لا راغلی یم، ما ویل چي غونډه را څخه تېره نه سي. له دې خبري سره سم د غونډې ټولو برخه والو وخندل.

ولسمشر په خندا وویل: رښتیا هم پیسې ښه شی دي، رحمان بابا د دنیا په باب څه ښه ویلي دي:

ښــــــــــــــــــه ده ښــــــــــــــــه ده دا دنیــــــــــــــــــــــــا
چــــــــــــــــــــي توښــــــــــــــــــــه ده د عقبــــــــــــــــــــــا
کــــــــــه یــــــــــې تویــــــــــه پــــــــــر صــــــــــحرا کــــــــړې
ښایســـــــــــــــته کانـــــــــــــــدي صـــــــــــــــحرا

موږ پر شېرپور غوندي سپېره ځای دنیا توی کړه، ګورئ تاسي خو ټول هلته کورونه لرئ، اوس شېرپور څومره ښایسته ځای دی، ښه په هر صورت اوس خپله غونډه پیل کوو. اول به د دفاع وزارت پر وړاندیزونو خبري وکړو. د دفاع وزیر سترګي سره ومښلې، مخ ته پرته دوسیه یې راپورته کړه او ویې ویل: موږ غواړو د ملي اردو په چوکاټ کي پنځه زره عسکر زیات کړو چي مالي لګښت مو یې پنځه سوه میلیونه افغانۍ اټکل کړی دی. ده لا د موضوع جزیات نه وه ویلي چي د کورنیو چارو وزیر یې خبره ونیوله او ویې ویل:

رئیس صاحب زما په فکر نورو عسکرو ته هیڅ اړتیا نسته، که خبره د داخلي امنیت وي نو هغه خو زموږ پولیس او امنیتي کمپنۍ ساتلای سي او که ددوی دا مطلب وي چي په ملي اردو د طالبانو او القاعده وو مخه ونیسي نو دا کار امکان نه لري. ددې نو یو عسکرو تاوان دا دی چي د امنیتي کمپنیو اړتیا تر پوښتني لاندي راولي. او سمهال په افغانستان کي په لسګونو امنیتي کمپنۍ په کار لګیا دي چي که دا کمپنۍ وتړل سي، نو ډېر خلک به بې کاره سي. مثلاً اول زه درې امنیتي کمپنۍ لرم، دغسي نور وزیران درواخله چي له دې لاري ډېر وزیران ، وبخښئ خوله مي خطا وته، ډېر خلک ډوډۍ پیدا کوي.

ولسمشر د تائید په ډول سر وښوراوه او ویې ویل:

رښتیا هم چي زموږ د خلکو کار او روزګار ډېر ضروري دی او تر ټولو مهمه دا ده چي ماته د خپلو وزیرانو روزګار ډېر مهم دی، په تېره بیا د کورنیو چارو وزیر خو ډېر راباندي ګران دی، ځکه چي پلار یې ډېر ښه سړی و. خیر دا موضوع دي پر همدې ځای پاته وي اوس به د مهاجرینو د وزیر خبري واورو. د مهاجرینو وزیر چي لا یې خبرو ته پوره چمتووالی نه درلود، وارخطا غوندي د دوسیې پاڼي سره واړولې او ویې ویل: موږ غواړو په راتلونکي کال کي د شلو زرو کورنیو د راستنېدو پروګرام جوړ کړو چي ددې کار لپاره پنځه سوه میلیونه افغانیو ته ضرورت لرو. ده لا خپله خبره نه وه پوره کړې چي د کلیو پراختیا وزیر یې په خوله کي ورولوېد او ویې ویل: وزیر صاحب که شل زره کورنۍ په یوه کال کي افغانستان ته راستانه سي نو موږ ته به ګرانه وي چي ددوی لپاره د اوسېدو ځایونه برابر کړو. ولسمشر وویل چي ښه سمه ده د مهاجرینو خبره به بیا ګورو. بیا یې د کورنیو چارو وزیر ته مخ ورواړاوه او ویې ویل: ښه ځوانه وایه تا خو هم ښه ډېر کاغذونه مخ ته ایښي دي.

د کورنیو چارو وزیر خپلي پنډو ښیښو والا عینکي پر سترګو کړې او ویې ویل: رئیس صاحب تاسي ته خو معلومه ده چي د لویو لارو امنیت ډېر خراب دی، نو موږ غواړو چي په نوي کال کي د لویو لارو د ساتلو لپاره دري زره نوي پولیس استخدام او وروزو چي لګښت یې پنځوس میلیونه افغانۍ کېږي. ددې خبري سره سم د ټرانسپورټ د وزیر رنګ سور سو او ویې ویل: رئیس صاحب تاسي ته خو ډېره ښه معلومه ده چي له کومي ورځي راهیسي د لویو لارو امنیت خراب سوی نو ډېری خلک په طیارو کي سفرونه کوي، چي له دې لاري زموږ عواید لس برابره لوړ سوي دي، نو که د لویو لارو امنیت وساتل سي ښکاره خبره ده چي زموږ په داخلي هوایي پروازونو کي کموالی راځي او ډېر تاوان کوو. اوس ټول شتمن خلک په طیارو کي سفرونه کوي او غریب خلک که په موټرو کي هم سفر وکړي څوک څه نه ورته وایي. ولسمشر وخندل او ویې ویل: یاره وزیر صاحب دا خو دې ډېره ښه خبره وکړه، زما خو دې خبري ته هیڅ پام نه و، موږ باید دولتي عواید نور هم لوړ کړو چي ملي اقتصاد مو پیاوړی سي.

وروسته د سرحداتو وزیر غاړه تازه کړه او ویې ویل: موږ غواړو خپلي سل سرحدي تاڼې چي د تېرو جګړو پر مهال له منځه تللي وې، بیرته فعالي کړو چي ددې کار لپاره څلور سوه ملیونه افغانیو ته اړتیا لرو. له نشه یي توکو سره د مبارزې وزیر وویل: رئیس صاحب که چېري د افغانستان ټولي سرحدي تاڼې فعالي سي نو د تاریاکو د قاچاقو مخه نیول کېږي او په نتیجه کي یې تاریاک ارزانه کېږي، کله چي تاریاک ارزانه سول خلک یې نه کري، د تاریاکو کښت چي بند سو ښکاره خبره ده چي زموږ وزارت ته هیڅ اړتیا نسته. زه فکر کوم چي د یوه فعاله او ډېر ضروري وزارت لغوه کېدل یوه لویه ضایعه ده. افغانستان چي تر اوسه بې سرحدي تاڼو خدای ساتلی و، تر دې وروسته به یې هم خدای وساتي.

ولسمشر وخندل، د نشه یي توکو د مبارزې د وزیر پر اوږه یې لاس کښېښود او ویې ویل: بې غمه اوسه زوروره، ما خو مخکي لا وویل چي ماته د خپلو وزیرانو روزګار ډېر مهم دی. که ما دا وزارت لغوه کولای نو پخوا به مي لا لغوه

کړی وای، ځکه چي ددې وزارت له جوړېدو سره د ترياکو کښت څو برابره ډېر سوی دی، خو زه دا کار نه کوم.

تر دې وروسته د لوړو زده کړو وزير وويل: موږ په پام کي لرو چي سږکال په بېلابيلو ولايتونو کي درې نوي پوهنتونونه جوړ کړو. د کار او ټولنيزو چارو وزير يې خبره ونيول او ويې ويل: زه فکر کوم چي دوی په لوی لاس موږ ته جنجال جوړوي، موږ بايد دومره محصلين جذب کړو چي تر فراغت وروسته کارونه ورکړو. که دا درې نوي پوهنتونونه جوړ سي ښکاره خبره ده چي هر کال به د فارغانو په شمېر کي ډېروالی راځي. زه چي خپلو امکاناتو ته ګورم نو نورو فارغانو ته کارونه نه سو ورکولای.

ولسمشر وخندل او ويې ويل: رښتيا هم چي دا کار به وزير صاحب ته جنجالونه جوړ کړي، اوس که خلک بېکاره دي او يا په داسي کارونو اخته دي چي لږ اجوره لري، دومره غټه ستونزه نه ده، ځکه چي باسواده خلک چندان نه دي بېکاره، خو که يو باسواده سړی ختګر او يا بېکاره وي نو ټول خلک به ناري وهي چي وګوره باسواده سړی بې کاره دی او يا ختي کوي. اوس دي دا پروژه هم پاته وي، بيا به يې سره ګورو. ښه اوس به وګورو چي د کانو او سپکو صنايعو وزير صاحب څه وړانديزونه لري؟

د کانو او سپکو صنايعو وزير وويل: موږ د راتلونکي کال لپاره دوې پروژې لرو. يو د جواهرو او بله د زمردو د يوه کان را ايستل دي چي لګښت مو يې درې مليارډه افغانۍ اټکل کړی دی. دوهمه پروژه مو د ښځو لپاره په کورونو کي د لاسي صنايعو د زده کړي کورسونه دي چي پر دې پروژه پنځه سوه ميليونه افغانۍ لګښت راځي.

د دفاع وزير وويل چي دا پروژه دي موږ ته راکړل سي، موږ يې ډېره ښه عملي کولای سو، ځکه چي موږ په دې اړه ډېره تجربه لرو. زموږ ځيني جنرالان چي پخوا جهادي قوماندانان ول د جواهرو او زمردو څو کانونه را ايستلي دي، ان دا چي په دې هم ښه پوهېږي چي چيري يې خرڅ کړي. د ښځو د چارو وزيري پوړنۍ پر سر ټينګ کړ او ويې ويل: وزير صاحب زه په لومړۍ پروژه کي څه نه وايم، خو دوهمه پروژه مو زموږ فعاليتونه له خنډ سره مخامخ کوي، موږ غواړو چي ښځي له کورونو څخه راووزي او له کوره د باندي په دفترونو او نورو برخو کي کار وکړي خو تاسي يې په کورونو کي مصروفه ساتئ.

د کانو او سپکو صنايعو وزير چي خوله خبرو ته جوړوله نو ولسمشر مداخله وکړه او ويې ويل: زه چي ګورم نو دا موضوع يو څه جنجالي ده، ښه به دا وي چي پرې يې ږدو، اوس به وګورو چي د نشه يې توکو سره د مبارزې وزير صاحب څه وايي. وزير صاحب ژر ژر د دوسيې پاڼې سره واړولې او ويې ويل: موږ غواړو چي د ترياکو د کښت پر ضد يو تبليغاتي کمپاين وکړو چي ددې کار لپاره پنځوس ميليونه افغانيو ته ضرورت لرو. د ارشاد، حج او اوقافو وزير وويل چي دا ښه پروژه ده خو که د کوکنارو په کښت کي نابېره کمښت راسي نو د حاجيانو شمېر به هم ورسره کم سي، ځکه چي ډېر خلک د ترياکو په پيسو حج ته ځي. د ښځو چارو وزيري وويل چي که د ترياکو کښت کم سي

نو ودونه به هم ورسره کم سي او ډېري نجوني به بې واده پاته سي ځکه چي ډېر خلک د تاریاکو په پیسو ودونه کوي. ولسمشر په خندا وویل: فکر کوم چي ستاسي دواړو اندېښني پر ځای دي، بس دا پروژه دي هم د اوس لپاره پاته وي. ورپسې د کرهنې وزیر دولسمشر خواته وکتل او ویې ویل: موږ غواړو چي د ځینو مضرو حشراتو پر ضد یو پراخ کمپاین وچلوو، لکه د انارو مچ، ملخ او داسي نور چي لګښت یې پنځه سوه میلیونه افغانۍ دی. د دفاع وزیر وویل چي زما د معلوماتو له مخي دغه مضر حشرات اکثره له پاکستان څخه راغلي دي. زه افغانستان ته ددغو مضره حشراتو راتګ تصادفي نه بولم، بلکي داسي فکر کوم چي دا به د پاکستان حکومت رالېږلي وي چي له دې لاري زموږ زراعت له پښو وغورځوي. هر هغه مضر موجود چي د پاکستان له خوا افغانستان ته رالېږل کېږي د القاعده او طالب حکم لري. تاسي ته خو معلومه ده چي د القاعده وو او طالبانو سره مبارزه د دفاع وزارت کار دی، نو که دا پروژه موږ ته راکړل سي موږ یې په ډېر بریالتوب سره مخ ته بېولای سو. ولسمشر تندی په ورغوي وواهه او ویې ویل: اوف ورک یې کړئ! څو واره مي درته ویلي دي چي دلته د القاعده او طالب نوم مه اخلئ، نور ګرد سره دا بحث پرېږدئ، دا پروژه دي هم اوس پاته وي، راسئ چي د عامي روغتیا وزارت پر وړاندیزونو خبري وکړو.

د عامي روغتیا وزیر په فاتحانه انداز سره غاړه اوږده کړه او ویې ویل: زموږ د څېړني له مخي د خلکو ډېري ناروغۍ، د ککړ چاپېریال له امله دي. ددې ستونزي د حل لار دا ده چي باید د روغتیا په برخه کي د خلکو د عامه پوهاوي کچه لوړه سي، نو موږ غواړو د عامه پوهاوي لپاره په یوه پراخ کمپاین لاس پوري کړو چي لګښت به یې یو ملیارډ افغانۍ وي. له دې خبري سره ټولو وزیرانو ناري کړې او په یوه خوله یې وویل چي وزیر صاحب ته خو موږ ټول په بلا اخته کوې. لومړی د ټرانسپورټ وزیر وویل: که د خلکو د روغتیایي پوهي سطحه لوړه سي نو پر موږ به د انتقادونو باران جوړ سي، ټول به وایي چي چاپېریال د موټرو د دود له امله ککړ سوی دی.

د کرهنې وزیر وویل چي خلک به وایي چي د ځنګلونو بیا رغوني ته پام نه دی سوی. د ښار جوړولو وزیر وویل چي خلک به وایي چي د څښلو پاکي اوبه نسته او ښار پاکولو ته پام نه دی سوی. د سوداګرۍ وزیر وویل چي خلک به وایي چي ټول ښار دود پر سر اخیستی دی، ځکه چي سوداګر هیواد ته بې کیفیته تېل واردوي. نورو وزیرانو لا خپل دلایل نه وه ویلي چي ولسمشر مداخله وکړه او ویې ویل: بس بس نور بحث ته ضرورت نسته. ماته د خپل مملکت ثبات تر ټولو مهم دی. تر دې لا د خپلي کابینې ثبات ډېر راته مهم دی. یوه پروژه چي دومره جنجالونه جوړوي، په تېره بیا زما د وزیرانو د خوابدۍ سبب کېږي، بیخي یې نه عملي کوو، زه خو وایم چي دا پروژه دي د تل لپاره پاته وي، ښه اوس به د مالیې وزارت پر وړاندیزونو خبري وکړو. د مالیې وزیر وویل:

موږ او تاسي ټولو ته معلومه ده چي په افغانستان کي ورځ په ورځ امنیت خرابېږي، دولتي چارواکي، په تېره بیا وزیرانو ته ګرانه ده چي په بازار کي له عامو بانکونو سره معاملې وکړي، ځکه چي هلته نه موږ خوندي یو او نه مو پیسې. همدا اوس که په کابل کي وضعیت ناڅاپه خراب سي نو موږ نه سو کولای چي خپلي پیسې خارجي ممالکو

ته انتقال کړو ، نو موږ ددې اړتیا په پام کې نیولو سره غواړو په ارګ کې د ننه یو بانک جوړ کړو چې یو ملیارډ افغانۍ لګښت غواړي. دا بانک به پر نړیوالو معیارونو برابر وي چې یوازې به ولسمشر ، د هغه مرستیالان او وزیران حسابونه پکښې ولري. ولسمشر لا څه نه وه ویلي چې ټولو وزیرانو په یوه خوله وویل: یاره دا خو واقعاً ډېره ښه پروژه ده. ولسمشر چې خوله یې له خندا ډکه وه، وویل: رښتیا هم چې ډېره ښه پروژه ده، زه یې همدا نن د منظورۍ فرمان لیکم، بس سبا په کار پیل وکړه. اوس غونډه پر همدې ځای پای ته رسوو ، سبا به د نورو وزارتونو پر انکشافي بودیجې خبرې کوو. غونډه په رسمي ډول پای ته رسېدلې ده خو زه به په پای کې یوه ټوکه ووایم. وایي چې یو وخت یو ډېر شتمن سړی مړ سوی و چې په اسقاط کې یې غریبانو ته ښه ډېرې پیسې ورسېدې. په دې وخت کې یو غریب سړی چې زرګون نوټ ور رسېدلی و ، وویل:

هـــــــر ســــــــــړی هـــــــم ښېـــــــــې اوږدې کانـــــــــدي وای مـــــــــړ یــــــــم
جـــــــار قربـــــــــان ســــــــم د حـــــــــاجي صـــــــــاحب تـــــــــر مــــــــــړي

نو زه هم وایم چې:

هــــــر وزیـــــــــر وایــــــــي زمـــــــا پـــــــلان تـــــــر نـــــــورو ښـــــــه دی
جـــــــار قربــــــان د مــــــــالیې وزیــــــــر تــــــــر پــــــــلان ســــــــم.

# افغانستان ته د نوبل جایزه ورکول کیږي

د کمیسیون مشر پر خپل سور او غوښن مخ د سمال راتېر کړ، د معدني اوبو بوتل یې پر سر پورته کړ، یو غټ ټېغ یې وکیښ او بیا یې د غونډې برخه والو ته وویل: تاسي ته معلومه ده چې غربت د ډېرو بد مرغیو مور ده، لکه تراهګري، اداري فساد، جرمونه، قاچاق، بې سوادي او داسي نور. اول داچې که په هیواد کي غربت وي خپل موټر او کور به در پوري اور وي، ټولو به سترګي درته نیولي وي، وایي وګوره د نورو مامورینو په وچه ډوډۍ وس نه رسېږي او د دوی پیسې یې کړوسیان لا نه سي خلاصولای. نو له همدې امله زموږ زړه سواند جمهور رئیس د ټولو وزارتونو له استازیو څخه دغه زموږ کمیسیون جوړ او وظیفه یې راته سپارلې چې د غربت ختمولو لپاره یو پلان جوړ کړو.

د حج او اوقافو د وزارت د استازي خوله ویره سوه، پر شونډو یې ژبه تېره کړه او ویې ویل: ښه دا ووایه چې پیسې پکښې سته کنه؟ د کمیسیون مشر په خندا ځواب ورکړ: پیسې به ولي پکښې نه وي، تا نن بې پیسو یو کار لیدلی دی؟ ښه اوس اصلي موضوع ته راځو. هغه معلومات چې موږ ته په واک کي راکول سوي دادي چې، د افغانستان شپږ ملیونه خلک ډېر غریب او ژوند یې په خطر کي دی، موږ اوس پر دې خبري کوو چې څنګه کولای سو ددغو غریبو خلکو ژوند وژغورو؟

د کار او ټولنیزو چارو وزارت استازي چې تازه له تشنابه راوتلی او لاسونه یې لانده ول وار د مخه کړ او ویې ویل: زما په فکر که د کار زمینه ورته برابره کړو نو د دې غریبو خلکو ژوند به ښه سي. د کمیسیون رئیس یې په ځواب کي وویل: دولت به څومره خلکو ته کار ورکړي؟ په امریکا کي د دې دومره امکاناتو سره سره بیاهم بې کاري سته. په هر حال بیا هم دولت خپل وس له چا نه دی سپمولی، په تېره بیا خپله جمهور رئیس صاحب. هر چاچي یو څوک ورته معرفي کړی نو رئیس صاحب بې له دې چې ویې پېژني او یا یې اهلیت په پام کي ونیسي هغه یې خپل مشاور وزیر مقرر کړی دی. ان داچي اوس خپل ټول مشاور وزیران پېژني هم نه. اصلاً د رئیس صاحب هدف دادی چې خلکو ته کار پیدا سي کنه نو تا داسي لیدلي وي چې تر کلي یې نایان ډېر وي.

د کورنیو چارو وزارت استازي ځان په څوکۍ کي سره سم کړ او ویې ویل: زما نظر دادی چې تر څو په افغانستان کي سوله نه وي راغلې نو غربت به تر دې نور هم ډېر سي. د اقتصاد وزارت استازي پر خپله راوتلې خېټه نیکټایي سمه کړه او ویې ویل: زه داسي فکر کوم چې سوله په خپله د غربت یو ستر عامل دی، که په افغانستان کي سوله وای نو دا دومره مرستي به له کومه کېدای؟ کېدای سوای چې اوس موږ خپله هم غریبان وای. په دې خبره د غونډې ټولو برخه والو د تائید په ډول سرونه وښورول.

ورپسې د کانو او صنایعو وزارت استازي چې پزي ته یې د سمال نیولی و وویل: دلته مخکي د کار او روزګار خبره

یاده سوه، تاسي ته خو معلومه ده چي افغانستان د کانو له پلوه ډېر بډای هېواد دی، نو که دغه کانونه راو ایستل سي یو خو به زموږ ملي اقتصاد پیاوړی سي او بل به ټولو خلکو ته کار پیدا سي. د دفاع وزارت استازی چي خوب زنګاوه وویل: زه فکر نه کوم چي دادي یوه موثره لاره وي، ځکه د روسانو د اشغال پر مهال د افغانستان په یوه ولسوالۍ کي د قیمتي ډبرو ځو کانونه راوایستل سول خو له بده مرغه چي خپله د هغې یوې ولسوالۍ خلک هم په ماړه نه سول.

د زراعت وزارت استازي په پیپسي یو غټ خرپ وکړ او ویې ویل: د افغانستان ډېر خلک په کرنه او مالدارۍ بوخت دي، نو که موږ د اوبو بندونه ورته جوړ کړو او به به ډېري سي، خلک به په زراعت بوخت او په دې ډول به غربت ختم سي. د کورنیو چارو وزارت استازي خپله خولۍ پر مېز کښېښوول، پر سر یې لاس تېر کړ او ویې ویل: ستاخبره بیخي سمه ده، تاته خو معلومه ده چي بندونه باید په کلیوکي جوړ سي خو کوم د نر زوی دی چي کلي ته سر ور ایسته کړي، موږ د کجکي بند ته ځیني سامان الات د شپږ زره کسیزه هوایي او ځمکني قواوو په بدرګه یوړل.

د سوداګرۍ وزارت استازي پر شونډو ژبه تېره کړه او ویې ویل: که موږ خپلو محصولاتو ته نړیوال بازار پیدا کړو زه فکر کوم چي ډېره ګټه به وکړو او غربت به ورسره ختم سي. د نشه یي توکو پر ضد د مبارزې وزارت استازي چي تاریاک یې تر غاښ لاندي ایښي ول او خوله یې چړپوله وویل: زه فکر نه کوم چي زموږ محصولات دي له نړیوالو محصولاتو سره رقابت وکولای سي، البته یوازي زموږ تاریاک دغه میدان ګټلای سي چي اوس هم د تاریاکو بازارونه ټول زموږ په واک کي دي. له تاریاکو څخه لاس ته راغلي پیسې د افغانستان د ملي اقتصاد دریمه برخه جوړوي چي دا ټول زموږ د وزارت لاس ته راوړنه ده، کله چي زموږ وزارت نه و نو په افغانستان کي تاریاک بیخي لږ کرل کېدل، خو کله چي زموږ وزارت جوړ سو نو د تاریاکو کښت څو برابره ورسره ډېر سو. د کورنیو چارو وزارت استازي سترګه ورته ووهل او سوکه یې وویل: هغه خو زموږ او ستاسي خپلمنځي خبره ده، په غریبانو پوري اړه نه لري.

د کمیسیون مشر لکه مارته چي شپېلۍ ووهي غاړه اوږده کړه او ویې ویل: زه لومړی ستاسي ټولو څخه یوه پوښتنه کوم. هغه دا چي که په افغانستان کي تراهګر نه وای نو تراهګري به له کومه کېدای؟ ټولو په یوه خوله ځواب ورکړ چي تراهګري به ګرد سره نه وای. د کمیسیون مشر ورپسي زیاته کړه: ښه نو بیا خو ټول پوهېږو چي همدا تراهګر دي چي د تراهګرۍ اور یې بل کړی دی. دغسي که په افغانستان کي غریبان نه وای نو غربت به هم نه وای، زما په فکر ترڅو چي مو په افغانستان کي د غریبانو ریښې له بېخه نه وي ایستلي غربت به هیڅکله ختم نه سي. له دې خبري سره سم د کمیسیون ټولو غړو چکچکي وکړې.

د دفاع وزارت استازي د خپلي نیکټایي غوټه ټینګه کړه او ویې ویل: دا خو واقعاً ډېر ښه نظر دی خو زما سره یوه پوښتنه سته، هغه دا چي ایا نړیواله ټولنه، په تېره بیا امریکا به په دې کار کي زموږ ملا وتړي؟ د کمیسیون مشر په

خندا لاس پورته واچاوه او ویې ویل: ته هم عجیبه خبري کوې؟ نړیواله ټولنه به ولي زموږ ملا نه تړي، دا د غربت له منځه وړلو لپاره هغه د انګریزانو په اصطلاح (Short cut) یا لنډه لار ده، زه باور لرم چي نړیواله ټولنه په دې کار کي اوس هم زموږ ملګرې ده، ځکه چي په افغانستان کي هره ورځ پر غریبانو خلکو بمباري کوي. د بهرنیو چارو وزارت استازي چي د سر وښنته یې ږمنځول وویل: دا پلان به څومره عملي وي او بل د افغانستان پارلمان به په دې کار کي زموږ ملاتړ وکړي؟

د کمیسیون مشر مېز په سوک وواهه او ویې ویل: دا پلان په سلو کي سل عملي دی، ځکه موږ ولیدل چي کله موږ له شېرپور څخه غریبان وشړل نو هلته غربت هم ورسره ختم سو، که مو له هغوی سره مرستي کولای نو ملیونونو ډالرو ته اړتیا ول، خو اوس یوازي یوه بلډوزر دغه اړتیا پوره کړه، موږ او تاسي خو ټول هلته خپل کورونه لرو، اوس هلته د غربت هیڅ نښه نسته، بیخي اروپا غوندي ښکاري. پاته سوه د پارلمان خبره، زه باور لرم چي پارلمان به په دې کار ډېر خوښ سي، ځکه چي اول خو په پارلمان کي کوم غریب وکیل نسته او بل دا چي هغوی د ملت استازي دي، د هغوی یو هدف هم دغه دی چي په هېواد کي دي غربت ختم سي او که غربت ختم سي، نو د پارلمان د وکیلانو معاشات او نور امتیازات به هم څو برابره ډېر سي.

د کمیسیون مشر چي پوه سو چي خبري یې پر ټولو ښې لګېږي نو خپل اواز یې ډډ کړ او ورپسې زیاته یې کړه: تاسي ګورئ نړیوالي ټولني په دې دومره ډېرو مرستو په افغانستان کي غربت ختم نه کړ، نو که موږ په خپلو لږوامکاناتو دغه بریا لاس ته راړو زه باورلرم چي د سږکال د نوبل جایزه به خامخا موږ ته راکړل سي.

# زه څنګه ولسمشر سوم؟

سرکاتب زلمي خان شونډه تر غاښ لاندي کړې ول، ورو ورو یې له ځانه سره یوه سندره زمزمه کوله او د حاضرۍ د کتاب خواته ور تېر سو. د حاضرۍ په کتاب کي یې لا لاسلیک نه و کړی چي د تیلیفون ګړنګهاری پورته سو، مدیر غمي خان د ټیلیفون غوږۍ پورته کړه او بیا یې کرار زلمي خان ته وویل چي رئیس صاحب دي غواړي. زلمي خان شعبه دوه ګامه کړه او په منډه د رئیس دفتر ته ورغی. کله چي بیرته راغی نو ښه یې الوتي ول، ویل زه یې له کاره ګوښه کړم. له دې خبري سره سم مو ړټول له خپلو ځایو نو څخه ولاړ سوو او په یوه خوله مو وویل چي ولې؟ ده ویل نه پوهېږم. په دې کار مو ړټول خواشیني سوو او داپوښتنه راته پیدا سوه چي سرکاتب صاحب خو ډېر فعال سړی و، خدای خبر چي ولي به یې له کاره ګوښه کړی وي؟

سبا سهار زموږ دفتر ته رئیس صاحب د مخه او ورپسې یو چپړاسي راغی چي یو بوډا سړی یې را په شا کړی و. رئیس صاحب بوډا ته اشاره وکړه او و یې ویل: دا ستاسي نوی همکار دی چي نصرو لالا نومېږي او د سرکاتب زلمي خان پر ځای به کار کوي. دی که څه هم سواد نه لري خو ډېر ښه سړی دی، خیر دی په کارونو کي تاسي مرسته ورسره وکړئ. بېچاره ضعیفه دی، دلته دریم منزل ته نه سي راپورته کېدای، چپړاسي به یې سهار مهال په شا راپورته کوي او د رخصتۍ پر وخت به یې بیرته کښته کوي.

رئیس صاحب پکول د تندي خواته را وښویاوه او زیاته یې کړه: ښایي ستاسي ټولو سره به دا پوښتنه پیدا سوې وي چي زلمی خان څنګه داسي نابېره او بې دلیله له کاره ګوښه سو؟ تاسي ته معلومه ده چي د بن په کنفرانس کي پرېکړه سوې وه چي د افغانستان دولت باید د ملي مشارکت د اصل پر بنسټ جوړ سي، یاني د افغانستان ټولو قومونو ته برابره ونډه پکښي ورکړل سي، نو ماهم د یوه دولتي مامور په صفت ځان مکلف وګاڼه چي د غه پرېکړه عملي کړم. ما چي وکتل نو زموږ په ریاست کي د یوه قوم مامورین ډېر او د بل قوم دا لږ ول، ځکه مو نو ځیني مامورین لیري کړل چي په هغه ډله کي یو هم زلمی خان دی.

نصرو لالا د رئیس صاحب پخوانی باغوان او اوس ډېر سپین ږیری سړی و، ږېنګۍ سوربخنه ږیره یې وله او یو زوړ پکول یې پر سر و، پر ملا را کړوپ او داسي ډنګر و لکه د پرتوګ ښار لرګی. کله چي به مو د عمر پوښتنه ځني وکړه نو ده به ویل چي نور نه یم خبر خو زما مور دي خدای وبخښي راته ویل به یې چي ته د سقاوي په کال پیدا سوی یې، اوس نو تاسي حساب ورته وکړئ چي د څو کالو به یم. نصرو لالا به هره ورځ له ځانه سره خپل یو اووه کلن لمسی هم راوست چي ټوله ورځ به یې د شعبې په کمپیوټر کي ګېمونه کول.

یوه اوونۍ وروسته زموږ په شعبه کي دا خبره راپورته سوه چي دا څنګه ملي مشارکت دی چي د یوه قوم استازی دي مدیر او نور دي عادي مامور، پیاده او ټایپیسټ وي؟ زموږ مدیر غمي خان که هر څو مره د زده کړي، لیاقت، رتبې

او اهلیت خبره کوله خو چا نه ورسره منله. تر ډېرو اوږدو بحثونو وروسته مو داسي پرېکړه وکړه چي مدیریت به د یوې یوې میاشتي لپاره د شعبې د ټولو کارکوونکو تر منځ نوبتي وي. د پچي پر اساس لومړی زموږ د شعبې چپړاسي، خیرو ماما مدیر او غمی خان یې پر ځای چپړاسي وټاکل سو. خیرو ماما یو اتیا کلن سپین ږیری او په غوږو هم لږ درونډ و چي د حاضرۍ په کتاب کي به یې ګوته لګوله. له کومي ورځي راهیسي چي خیرو ماما مدیر سوی و نو په شعبه کي دومره کار نه و، بس ټوله ورځ به مو کیسې سره کولې چي اکثره به یې د خیرو ماما د عسکرۍ د ختونو کیسي وې. که څه هم موږ دغه کیسي له ده څخه څو څو ځله اورېدلي وې خو دا چي خیرو ماما اوس زموږ مدیر و، نو ناچاره و چي بیا یې هم واورو. د شعبې پر دروازه مو ولیکل چي غونډه روانه ده، لطفاً مزاحمت مه کوئ.

موږ په شعبه کي ځان ته جلا دېګ پخاوه، یوه ورځ د ډوډۍ پر مهال خیرو ماما غاب ته وکتل، ویل او هو دا مو څومره ډېره مالګه وراچولې ده؟ دا خو زما فشار لوړوي. پخواني مدیر غمي خان چي اشپزي اوس ده کوله وویل: زه حیران یم چي د چا غوښتنه ومنم؟ که دېګ ته لږ مالګه وراچوم نو نور همکاران وایي چي مالګه یې ولې لږ ده او که ډېره مالګه وراچوم نو تاسي وایاست چي مالګه یې ولي ډېره ده؟ خیرو ماما تندي تریو کړ او ویې ویل: اوس هغه پخواني وختونه تېر سوي دي، باید زموږ ټولو غوښتني ومنل سي. بیا مو سره وویل چي جلا جلا دېګ خو نه سو پخولای او نه په یوه دېګ کي د ټولو ذوقونه ځایېدلای سي نو ښه به داوي چي تر دې وروسته به اشپزي هم په نوبت وي.

ما تر اوسه پوري دېګ نه و پوخ کړی، یوه ورځ مي دېګ له صابون څخه سم نه و پرېولی او کتغ مي پکښې پوخ کړی و. کله چي مو ډوډۍ وخوړه نو دسترخوان لا نه و ټول سوی چي نصرو لالا پر نس لاس تېر کړ او سوکه د تشناب خوا ته روان سو. دی لا نه و راوتلی چي غمي خان هم خپله ګېډه په لاس کښېکښل او ځان یې د تشناب دروازې ته ورساوه. کله چي نصرو لالا را و نه ووت نو غمي خان تندي تریو کړ او په درد یې وویل: نصرو لالا ژر را ووزه، زه هم په تکلیف یم، هله ژر کوه ! زه چي وایم کولمې مي غوټې غوټې پرې سوې. نصرو لالا لکه د غمي خان خبره چي یې ګرد سره نه وي اورېدلې نور هم وځنډېد، غمي خان غاښونه سره وچیچل، د تشناب دروازه یې په زوره ور وډبول او ویې ویل: ژر را ووزه دا ستا د پلار تشناب دی چي یو ساعت پکښې تېروې؟ په دې تشناب کي خو موږ ټول حق لرو، دا خو هغه پخواني وختونه نه دي. کله چي نصرو لالا له تشناب څخه راووت نو غمي خان په قهر پر ورمنډه کړه، نصرو لالا ځان یوې خوا ته کړ، غمي خان لکه غشی تشناب ته ننووت او دروازه یې په ځان پسې وتړله. تر دې وروسته مو یو مهالوېش جوړ کړ چي په هغه کي د هر قوم د مامورینو لپاره د تشناب وخت په دقیقو ښودل سوی و.

دوبی تېر سو او هوا سړه سوه. زموږ شعبې د لمر خوا ته یوه کړکۍ درلوده چي پخوا به غمي خان نژدې ورته کښېناست. دی له دې امله ګټمن و چي یو خو به ښه تود و او بل به یې د کړکۍ له لارې نسوار دباندي توف کول. یوه ورځ نصرو لالا د غمي خان پر ځای ناست و چي غمي خان راغی. کله چي یې نصرو لالا ولید چي د ده پر ځای ناست

دی نو په خندا یې ورته وویل: نصرو لالا اوس به نو تود سوی یې بس ده زما له ځایه ولاړ سه. پر نصرو لالا دا خبره بده ولګېده، تندی یې تریو کړ او په درد یې وویل: ولې ولاړ سم؟ دا ځای خو یوازې ستا په پچه نه دی ختلی، مورږ ټول حق پکښې لرو، زما هم ساړه کېږي. تر دې وروسته پرېکړه وسوه چې کړکۍ ته به هم په نوبت سره کښېنو. د دې نوبت لپاره مو هم یو مهالوېش جوړ او پر کړکۍ مو ونښلاوه. یوه ورځ نصرو لالا وویل: نن مراجعین اکثره دیوه قوم او یوې سیمې ول، دې خبرې ته هم پام په کار دی. بیا مو د هر قوم د مراجعینو لپاره یو مهالوېش جوړ او د شعبې پر دروازه وځړاوه.

په کومه ورځ چې به دیوه قوم د مراجعینو نوبت و، نو کار به یې هماغه یوه مامور کاوه او په شعبه کې به د هماغه قوم په ژبه خبرې کېدې چې د شعبې نور مامورین به چندان نه په پوهېدل. دا چې په هماغه ورځ به نور مامورین بې کاره ول نو په خپلو څوکیو کې به ارام ویده ول.

یوه ورځ چې مورږ ټول ویده وو، د خیرو ماما دې خبرې راویښ کړو: ایا دا انصاف دی چې یو مامور کار کوي او نور بېغمه ویده دي؟ بیا به مو داسې کول چې تر غرمې به مو کار کاوه او تر هغه وروسته به مو خوبونه کول. زمورږ ټایپستې عایشه جانې چې به یو ساعت کار وکړ نو لاسونه به یې د کمپیوټر پر کیبورډ پراته او دا به خوب وړې وله. یوه ورځ په خوب کې له څوکۍ څخه پړمخې راولوېده او پزه یې وینې سوه. کله چې یې د پزې وینو ته پام سو نو په په چیغو یې وویل: د خدای لپاره دا انصاف دی چې یو مامور په زړه او بل په نوې څوکۍ کې ناست دی. سبا زمورږ د ریاست اداري مدیر مورږ ټولو ته یوه یوه نوې څرخې څوکۍ راوړل. اوس نو زمورږ خولې په غوړو کې وې، په څرخې څوکیو کې به مو ښه درانه خوبونه کول چې خرهارې به مو ټوله شعبه پر سر اخیستې وله، په تېره بیا عایشه جانې خو داسې خرهارې کاوه لکه غویې چې دې تازه حلال کړی وي. اوس مورږ د ملې مشارکت شعار په بریالیتوب سره عملې کړی و. که څه هم د خوب پر مهال زمورږ خرهارې توپیر سره درلود خو په خوب کې مو داسې احساس کاوه لکه مورږ چې ټول یو وجود یو، ځکه چې زمورږ خوبونه او د هغه تعبیرونه یو ډول ول. یوه ورځ مې خوب لیده چې د ملې مشارکت اصل د افغانستان په ټولو ادارو کې عملې سوی دی. زده کړې، تجربې، تقوا او نورو کارې ځانګړتیاوو ته هیڅ اړتیا نسته، زه د خپل قومې نوبت له مخې مدیریت، ریاست، معینیت، وزارت او باالاخره ولسمشرۍ ته رسېدلی یم. دغه ډول خوب مې څو څو ځله ولید، یو عجیبه حالت و، کله چې به مو خپل خوب یو بل ته سره ووایه نو ټولو به یو ډول خوبونه لیدلې ول. زه په وینښه یو عادې مامور وم چې د یوې میاشتې معاش به مې تر بلې میاشتې پورې نه رسېده، خو چې سترګې به مې پټې کړې نو ولسمشر به وم.

# د ارګ مېلمستيا ولې وځنډېده؟

په ارګ کې دا مېلمستيا د يو شمېر قومي مشرانو په وياړ جوړه سوې وه چې د کابينې غړيو، معينانو او واليانو هم برخه پکښې درلوده. ولسمشر په خورا خوښۍ د ډوډۍ خوړلو تالار ته راغی، خو کله چې د ډوډۍ خوړلو مېز ته کښېناست نو نابېره يې تندی تريو او له درده سور واوښت. له دې سره سم ټول وارخطا سول چې يا خدايه څه پېښه سوه؟

ولسمشر مخ ته پروت د قورمې غاب ورپورته کړ، بوی يې کړ او بيا يې په درب بېرته پر مېز کښېښود. له دې درب سره لکه ځانمرګی بريد چې سوی وي، د کابينې ټول غړي، معينان او واليان له خپلو ځايونو څخه ولاړ سول. يو وزير چې تر دې مهاله يې له لوږې پرله پسې اردېمۍ کښلې، ناڅاپه يې خوله داسې کلکه بنده سوه لکه د يو چا ژامې چې د يخ له امله سره تېرې سي. ولسمشر وويل: اشپز چېرې دی، ژر يې راوغواړئ؟ اشپز چې تر دې مهاله د ډوډۍ خوړلو د مېز تر څنګ ولاړ و، منډه کړه او ځان يې د يوه چاغ وزير شا ته پټ کړ. دا چې ټولو کښته کتلي نو د چا پام نه سو چې اشپز د وزير شا ته پټ دی.

د ډوډۍ خوړلو په تالار کې چوپه چوپتيا خپره سوه، هيڅوک نه پوهېده چې څه پېښه سوه؟ د ولسمشر رنګ نور هم له درده سور سو او ورپسې زياته يې کړه: له دې مملکت سره هيڅوک هم خواخوږي نه لري. دا چې موږ په خپل ارګ کې دومره بې پروا يو په ولايتونو کې به څه حال وي؟ دا حقيقت تاسي ټولو ته معلوم دی چې زموږ دولت د خيرات په پيسو چلېږي. زموږ يو دوست هيواد چې له تراهګرۍ سره په مبارزه کې زموږ کلک ملاتړی دی او زموږ سره يې بې قيد وشرطه مليونونه ډالره مرستي کړي، ولې يې داسې په اسانه له لاسه ورکړو؟ که دا کار کوو، نو ايا دا به له دې وطن سره جفا نه وي؟

ټولو په يوه خوله وويل: هو صاحب دا خو رښتيا هم چې له وطن سره لويه جفا ده. ولسمشر ترخه خندا وکړه او بيا يې وويل: نو چې داسې ده بيا تاسي سترګې نه لرئ؟

له دې خبرې سره سم په ټولو سرونه وځړېدل. ولسمشر بيا د قورمې غاب ورپورته کړ او ويې ويل: تاسي ته معلومه ده چې سبا زموږ د دوست هيواد هندوستان ولسمشر کابل ته راځي. که تاسي سترګې درلودای او يا مو ډيپلوماټيکه تربيه درلودای، نو نن به مو د غوايي غوښې نه پخولای. کېدای سي د غوايي د غوښو بوی تر سبا پوري هم له لوښو څخه ليري نه سي. که پر دې نازولي مېلمه د غوايي د غوښو بوی ولګېده نو زموږ خو به پزه پرې سي.

تر دې وروسته بايد په ارګ کې د غوايي غوښې ګرد سره پخې نه سي. بل دا چې ټول لوښي دي له ارګ څخه لري

یوورل سي او پرځای دي يې نوي لوښي رانیول سي، ځکه چي دا لوښي د غوايي د غوښو بوی وهلي دي. تر دې وروسته د خوراک په برخه کي د افغانستان دولت د سبزي خوړلو د سیاست ملاتړ کوي. په هر صورت تاسي خپله ډوډۍ وخورئ زه يې نه خورم د خدای په امان. له دې سره سم په تالار کي ناست ټول مېلمانه یو په بل پسي ولاړ سول او د ډوډۍ خوړلو تالار خالي پاته سو.

# کاشکي د وزير صاحب وطندار وای

له مشرانو مي اورېدلي ول چي يو معلم او بل هم خورد ضابط پر يوه حال وي، خو عجيبه ده زه په دې دواړو کي يو هم نه يم بيا هم هيڅ مخ ته نه سم تلای. يوه شپه مي خپل اروابناد پلار په خوب وليد ، ويل ګل جانه زويه څنګه يې؟ ما ويل پلاره بس پوښتنه مه کوه، يوه مي نه دوې کېږي. زموږ د دفتر نور کار کوونکي ورځ په ورځ مخ ته ځي، خو زه هغه د چا خبره پياز په ګنډه په ډوډۍ پسي ګرځم، پلار مي وپوښتل: نو ولي مشکل څه دی؟

- مشکل دا دی چي زه يوه داسي نيمګړتيا لرم چي زموږ په دفتر کي يې هيڅوک نه لري، که دا نيمګړتيا مي نه درلودای نو اوس به زما هم خولۍ په غوړو کي وای.

- څه نيمګړتيا لرې؟ که پوهنتون دي مطلب وي نو هغه خو دي ويلی دی.

- نه بابا پوهنتون خو خپله زموږ رئيس، نصرو لالا هم نه دی ويلی.

- انګرېزي او کمپيوټر يادوې؟

- نه يو بل شی مي کم دی

- څه شی دي کم دی؟ پوهنتون دي ويلی دی، په انګرېزۍ او کمپيوټر پوهېږې، ښه ذهن لرې، نور څه غواړې؟

- کاشکي دا يو کمال مي هم نه درلودای، خو يوازې د نصرو لالا وطندار وای بس.

که سواد مي نه درلودای هم به مي ښه کار جوړ وای. نصرو لالا که څه هم بې سواده دی خو دا چي د وزير صاحب وطندار دی، هيڅوک د سواد پوښتنه نه ځني کوي.

سواد خو لا څه کوې، که عقل مي هم نه درلودای نو تر اوسني حال به مي ژوند ښه وای. د نصرو لالاورور جمال يو مخ له عقله خلاص، په اصطلاح بيرا دی خو هغه دی نر غوندي زموږ اداري مدير دی، د چا پلار يې مخ ته نه سي درېدای. ياره زه خو وايم که خدای په غوړو کوڼ پيدا کړی وای هم مي هيڅ پروا نه کېده. د نصرو لالا وراره، کوڼ سردار که څه هم په دواړو غوږو نه اوري خو د خريدارۍ مسئول دی.

ځيني انډيوالان مي راته وايي چي ته د بلبلانو په شان خوږه ژبه لرې خو څه فايده؟ کاشکي ګرد سره ګونګی وای خو د وزير صاحب وطندار وای. ګونګی نعيم چي د نصرو لالا باجه دی خدای بخت ورکړی دی، زموږ لوژستيک مدير دی.

خلک وايي چي ځواني لوی نعمت دی، خو ځواني له بخت سره خوند کوي، کنه تر دې ځوانۍ خو سپين ږيرتوب ښه

دی. د نصرو لالا خوابنې (ګل ببو ) چې ووينې نو داسي کباړ سوې، لکه د چمن او کوټې د لاري بس چې ډېر زوړ سي او په اصطلاح له اخ و ټوخه ولوېږي نو خاوندېې ښوکی ځني وکاږي او بيا غوايي پکښې وړي، خو ګل ببو د نامي لور بيا هم د خپل لوړ بخت له برکته له کاره نه ده لوېدلې او زموږ د استخدام مديره ده. ښوک ځه خبر دي چې دا به د اوياوو کالو وي. مخ يې کندي کندي دی، خو دا لکه بولډوزر هره ورځ دغو کندو ته خورا ډېر پوډر وراچوي. ظاهري بڼه يې د خپل کمال له برکته برابره ده او دفتري کار يې ټول له زه کوم.

مسلک او تجربه دي مي هم په اور پسې سي، لوبشتکی اسلم تر پرونه پوري پنچرمين و، خو دا چې د رئيس صاحب د خاله زوی دی اوس چېرمين، ياني زموږ عمومي مدير دی.

کله نا کله مي په زړه کي راوګرځي چې کاشکي خو مي مور د وزير صاحب وطنداره وای. د نصرو لالا مرستيال اکبر ته ګوره چې يو موټر اخلي او بل خرڅوي. يوه مياشت مخکي ښارنوالی د يو مليون افغانيو پر غلا ونيو، خو دا چې د وزير صاحب خوريې دی، درې ورځي وروسته بيرته راخوشي او اوس د پخوا په شان پر خپل ځای کار کوي.

زموږ د دفتر ټول مامورين سره خپلوان دي، لکه په تولسي ډرامه کي د (ګويندر ويراني) غونډي يوه کورنۍ ده، نور يې څه کوې زموږ رياست تيار (شانتي نيکيتن) دی. په دوی کي يوازې زه بلا وهلی هم د بل ولايت يم او هم له ويراني کورنۍ سره خپلوي نه لرم. اوس دي هم پر ما افرين سي چې د بل ولايت سړی يم او ځان مي ساتلی دی. يو متل دی چې وايي: شاباش دي پر انا سي چې له نهو منو اوړو څخه يې يوه پتيره پخه کړه. په دې باب مي ډېر چورت وهلی دی چې څنګه وکولای سم د ويراني کورنۍ غړی سم؟ خو څه وکړم ماته چل نه راځي.

# گوانتنامو پارک! ؟

د کندهار هوايي ډګر:

د تحقيق په شعبه کي يو خارجي سړی او يو افغان ترجمان ناست ول. د خارجي مخ تک سور او داسي چاغ و لکه پر مخ چي څو غالبوزو (غومبسو) چيچلی وي خو ترجمان بېچاره بيا داسي ډنګر او نری و لکه د بايسکل پمپ. خارجي قلم او کاغذ راپورته کړ، ويل نوم دي څه شی دی؟ ما ويل نوم مي جانان دی. خارجي زما د نوم په اورېدو له ځايه ولاړ سو، په زوره زوره يې وخندل، په چاغ مخ کي يې تنګي سترګي نوري هم تنګي سوې، دومره تنګي چي نژدې و پټي سوي وای. بس نور به نو څه درته ووايم داسي خوشاله سو لکه سپي ته چي غوړ هډوکی ورواچوې، خونابېره يې تندی تريو سو، لکه ښځي ته چي د لنګون درد ورولاړ سي، مخ يې په سره رنګ کي شنه لمبه وکړه، غاښونه يې سره وچيچل او په ډېر اواز يې وويل: ښه نو ته ملا جانان يې؟

- نه ملا نه يم، زه د اروزګان ولايت د چارچينو ولسوالۍ يو بزګر يم

- درواغ مه وايه! ته د طالبانو د حکومت په دوهم کال کي د هرات والي نه وې؟

- نه صاحب، زه د طالبانو د حکومت تر پايه پوري په پاکستان کي وم او بل هغه وخت زه د څوارلسو کالو وم، تا د څوارلسو کالو هلک ليدلی وي چي والي وي؟

- که ته هر څونه کوښښ وکړې چي ځان پټ کړې موږ دي بيا هم پېژنو

- قسم په خدای که درواغ درته وايم، که مو زړه ته نه لوېږي راځئ زموږ د مسجد له ملا او د کلي له ټولو خلکو څخه پوښتنه وکړئ

- ملا او کليوال پرېږده، موږ ډېر اسناد لرو چي ته ملا جانان يې، هغه ملا جانان چي زموږ پر ضد يې په ډېرو عملياتو کي برخه اخيستې ده.

- دا تاسي څه وايا ست؟ زما په ټول ژوند کي مي په ټوپک والله که يو ټک هم کړی وي، خپله خواري او غريبي کوو، چا ويل چي ما ستاسي سره جنګونه کړي دي؟

- دا به وروسته درته ووايم چي موږ ته چا ويلي دي. اوس يوه بله پوښتنه درڅخه کوم. ورمه شپه ستاسي د کور مخ ته زموږ بې پيلوټه الوتکو د طالبانو يو موټر وويشت، ته دا ووايه چي په دې موټر کي څو طالبان مړه سول او د چا نفر ول؟

- صاحب هغه د طالبانو موټر نه و، بلکي زمونږ غوا وه

- ورک سه، ته وا مونږ غوا او موټر نه سره پېژنو؟ زمونږ څخه د شپې په تیاره کي یو انچ شی نه خطا کېږي، ژیړ رنګه دوه سیټه بای فور موټر نه و؟

- درواغ نه درته وایم، قسم په خدای چي غوا وه.

خارجي تندی تریو کړ او ترجمان ته یې اشاره وکړه چي دی اوس بوزه.

د باګرام هوايي ډګر:

کله چي مي له سر څخه توره کځوړه لیري کړل سوه نو ګورم چي په یوه کوټه کي یم او یو خارجي سړی مي مخ ته ناست دی، خارجي د سترګې مشي په ډول لاس رااوږد کړ، ویل زما نوم جان دی. په پوښتنو یې لا شروع نه وه کړې چي خوله یې د خندا په ډول ویره سوه، ما چي ده ته وکتل نو ما هم ورسره وخندل. زما خندا بـه نو څه وه چي ځان مي پـه لوی جنجال کي واچاوه. جان راولاړ سو او پر مخ یې یو څو چپلاخي ووهلم، ویل بې ادبه تـه پـر مـا خاندې؟ ما ویـل پـر تـا مي نه دي خندلي، ما چي ویل ته خاندې، ما هم درسره وخندل. ترجمان په تریو تندي راته وویل چي مه خانده، د جان خوله د غسي ده سړی چي وایي راته خاندي. جان قلم او کاغذ مخ ته کښېښوول او ویې ویـل: ښـه مـلا جانانـه ! تـه اول مونږ ته دا ووایه چي ملا عمر چېري دی؟

- د خدای لپاره زه په ملا عمر څه خبر یم او بل چا ویل چي زه ملا جانان یم؟

- تا خپله وویل چي نوم دي جانان دی او ملا جانان ځکه یې چي زمونږ سپي درته غپلي دي

- نو سپی خو هسي هم غاپي؟

- زمونږ سپی ډېر هوښیار دی، هیڅکله بې ځایه چاته نه غاپي، تراهګر ډېر ښه پېژني. تا ولیدل چي پـه شلو نفرو کي یې یوازي تاته وغپل.

- صاحب زما تر نیولو یو ساعت مخکي زمونږ کور بمبارد سو چي زما پلار او مور پکښې شـهیدان سـول، ښایي زما له کالیو به د باروتو بوی ولاړېده، ځکه یې راته غپلي دي.

- یه داسي نه ده، زمونږ سپی هیڅکله زمونږ خپلو باروتو ته نه غـاپي. ښـه اوس دا راتـه ووایـه چي ورمـه ورځ چي تـه د چارچینو پر سړک ولاړ وې او په بوجۍ کي دي ماینونه اچولي ول، هغه دي چېري ښخ کړل؟

-صاحب قسم په خدای چي هغه زموږ د پالېز ژېړ کډوان ول چي بازار ته مي د خرڅولو لپاره وړل.

جان تر دې پوښتني وروسته پر مخ یوه کلکه څپېړه راکړه او ترجمان ته یې اشاره وکړه چي دی راځخه وباسه.

د ګوانتنامو زندان:

لس ورځي پرله پسې یې د او سپني په یوه تابوت کي اچولی وم، په تابوت کي داسي توره تیاره وه چي دلاس ګوتي نه ښکاربدې، تابوت هیڅ سوری نه درلود، یوازي یې یوه توربخنه ښیښه درلوده، کله چي به مو شکایت کاوه نو پر دغه توره ښیښه به مو لاس تېر کړ او عسکر به راغی. لسمه ورځ زما د تابوت سر خلاص سو او یوه ترجمان راته وویل چي راځه! ترجمان او یوه عسکر تر اوږو ونیولم او یوې کوټې ته یې بوتلم. په کوټه کي یوه پنډه ښځه ناسته وه چي قلم او کاغذ یې مخ ته پراته ول. که څه هم دې خندل مګر زه نه پوهېږم چي راته خندل یې او که راباندي خندل یې، خو ما زړه نه سوای کولای چي وخاندم. هغې وویل: اسامه او ملاعمر چېري دي؟

-نه یم خبر

-د پنټاګون او واشنګټن په پېښه کي د چا لاس و؟

-قسم په خدای که زما لاس پکښې و؟

-په یمن کي چي پر کښتۍ برید وسو او څوارلس امریکایان پکښې ووژل سول، هغه مهال ته چېري وې؟

-نه یم خبر، ما په خدای که په ټول ژوند کي کښتۍ لیدلې هم وي

-ته پوهېږې چي موږ ولي بندي کړی یې؟

-نو دا خو تاسي راته وواياست چي ولي مو بندي کړی یم؟ تاسي خو وایاست چي ته ملاجانان یې او زه ملاجانان نه یم

-نو که ته ملاجانان نه یې، ملاجانان چېري دی؟

-زه څه خبر یم چي ملا جانان چېري دی

-ګوره دا کار ستا په خیر دی، یا خو ووایه چي ته خپله ملاجانان یې او که ملا جانان نه یې نو د ملاجانان په باره کي موږ ته معلومات راکړه، که دا معلومات دي راکړل نو بس په هغه ورځ دي خوشي کوو.

کله چي ما له دې دواړو خبرو څخه نټه (انکار) وکړ نو خارجي ښځي پر سترګو یوه کلکه څپېړه ووهلم او عسکر ته

یې اشاره وکړه چې راڅخه ویې باسه. عسکر په سر توره کڅوړه راواغوستله او په یوه تنګ قفس کې یې واچولم. خوب، خوراک او هر څه مې په همدې قفس کې ول. څنګ ته مې د غسې نور قفسونه هم ول. د دې قفسونو ښه والی دا و چې یو بل ته نژدې ول، یوه بندي د څنګ ملګری هم لیدای سوای او هم یې خبري ورسره کولای سوای. کله چې به سهار راویښ سولو نو چا به ماشومان، چا به خپلوان او چا به خپل کور کلی په خوب لیدلي ول. له زندانه څخه خوشي کېدل خو به مو هره شپه په خوب لیدل.

یوه شپه مې خوب لیده چې په یوه لوی او ښایسته پارک کې یم، دا سې یو پارک وي چې هرډول اسانتیاوې لري، نور یې څه کوې چې د هیڅ شي کمی پکښې نه وي. سهار مې د غه خوب خپل یوه ګاونډې بندي ته ووایه، هغه راته وویل چې انشاء الله خدای به دې ازاد کړي.

په همدې شکنجو او ظلمونو کې دوه کاله راباندې تېر سول. یوه ورځ یې زما یو همسایه و ایست او پر ځای یې بل بندي هغه قفس ته راوست. همسایه ته مې وویل چې ته د کوم ځای یې؟ هغه راته وویل چې زما نوم ملا جانان دی او د کندهار ولایت د پنجوایي ولسوالۍ اوسېدونکی یم.

په خبرو خبرو کې پوه سوم چې دا هغه ملاجانان و چې زه یې دده په نوم راوستلی وم. ملا جانان ته مې وویل چې د خدای پر پار، زما سره مرسته وکړه، ته خو هسې هم په بلا اخته سوی یې، زه یې ناحقه ستا په نوم راوستلی یم. ملاجانان وویل چې ما خو خپل نوم نه دی اړولی او نه مې خپل کارونه ځني پټ کړي دي. له ملاجانان سره مې جوړه کړه چې دا وار به دواړه ورته وایو چې اصلي ملاجانان مخکې لاګوانتنامو ته راوستل سوی دی.

یوه ورځ یې تحقیق ته وغوښتلم چې دا وار د تحقیق په شعبه کې نوی خارجي ناست و. مخ ته پر اته کاغذ ته یې وکتل او بیا یې وویل: موږ په تېر تحقیق کې در څخه غوښتي ول چې یا ووایه چې ته ملاجانان یې او یا د ملاجانان په اړه معلومات راکړه. اوس دې څنګه خوښه ده؟ ما ویل زه خو ښکاره خبره ده چې ملاجانان نه یم خو ملاجانان په لاس درکولای سم. په دې خبره خارجي دومره خوشاله سو چې تر خوله یې لکه غوبي لوبي لوبي رمباړي ووتلې. ما ته یې وویل چې هله ژر راته ووایه چې ملاجانان چېرې دی؟

- په همدې زندان کې دی

- ټوکې مه کوه، سمه خبره وکړه

- ټوکې نه کوم، راځئ چې درته ویې ښیم، هغه په خپله خوله اقرار کوي چې زه ملاجانان یم

- تا پر موږ د بې عقلانو ګمان کړی دی او په خپلو چټیاتو زموږ وخت ضایع کوې.

- چټیات نه دي، راځئ په خپله یې وګورئ، زما څنګ ته په فلاني قفس کې دی.

خارجي ته درد ورغی او عسکر ته یې اشاره وکړه چي دی بوزه. عسکر هم تر لاس ونیولم او د او سپني په تابوت کي یې واچولم. سبا یې له تابوت څخه راوایستلم او د تحقیق شعبې ته یې بوتلم. د تحقیق مامور راته وویل چي مبارک دي سه، خوشي کېږې، بیا یې یو کاغذ راوړاندي کړ او ویې ویل: دلته ګوته ولګوه !

- زه خو یې نه سم ویلای، دلته څه شي لیکل سوي دي؟

- دلته لیکل سوي چي زه د طالبانو او القاعده شبکې مهم غړی وم او اوس وعده کوم چي بیا به په تروریستي عملیاتو کي برخه نه اخلم. زه د امریکا له متحده ایالاتو څخه مننه کوم چي په ګوانتنامو پارک کي یې زما ډېره ښه مېلمه پالنه کړې، په خپلو پیسو یې دې پارک ته راوستلی او اوس مي هم بیرته په خپلو پیسو کور ته استوي.

- د خدای لپاره زه کله طالب او القاعده وم؟

- ته خو ځکه طالب او القاعده یې چي کله زموږ سپي پر تا بوی وکیښی نو تا چیغه ورته ویلي دي او رټلی دي دی، بل دا چي په بوجۍ کي دي ماینونه اخیستي ول او غوښتل دي چي زموږ ټانکونو ته یې ښخ کړې.

- دا دروغ دي، هغه خو کېوان ول

- کېوان ول او که رومیان، خو زموږ سره د ماینونو په نوم ثبت دي.

ما ورته وویل چي تاسي ټول دروغ وایاست، زما سره مو څومره ظلمونه وکړل، ما ته مو بیخي د سړي په سترګه نه دي کتلي او اوس وایاست چي ته په پارک کي اوسېدلې؟ خارجي په خندا یو کوچنی ټایپ ریکارډ راپورته کړ او ویې ویل: دا دی تا خپله ویلي دي چي زه په پارک کي اوسېږم او ډېر خوشاله یم. بیا یې زما هغه خوب چي انډیوالانو ته مي ویلی او دوی په غلا ثبت کړی و راته واوراوه. وروسته یې راته وویل چي ستا خوښه ده که ګوته نه لګوې نو د تل لپاره به دلته بندي یې او که ګوته لګوې نو خوشي کوو دي، خو په دې شرط چي چاته به نه وایې چي زه په زندان کي وم، بلکي ورته وایې به چي زه د امریکایانو په مالي لګښت د سیل او چکر لپاره د کیوبا هیواد ته تللی وم. زه هم ناچاره سوم، ګوته مي ولګوله او له زندانه راخوشي سوم.

اوس مي کله کله په زړه کي راوګرځي چي یاره جانانه که پولیس وای نو د دنیا په هیڅ کونج کي به څوک درڅخه ورک سوی نه وای، وګوره ناټو، ایساف، امریکایان او ددوی انډیوالان څومره باټي ولي چي موږ داسي تخنیک لرو او هیڅوک نه سي راڅخه پټېدای، بیا یې هم ملاجانان پیدا نه کړ خو ما په یوازي سر او تش لاس ملاجانان پیدا کړ.

# دلته د ولسمشر فرمان نه چلیږي

ولسمشر په مجلس کي په نوبت د هرچا ستونزو ته غوږ نیوه، کله چي زما نوبت راغی نو په لوړ اواز او فاتحانه انداز یې راته وویل: معلم صاحب اوس خو به دي زړه پر ارامه سوی وي؟ څنګه سو پر هغه نومره ځمکه دي کور جوړ کړ کنه؟

- نه صاحب که ربښتیا درته ووایم نو هغسي سرګردانه او لالهانده ګرځم

- ولي ولي خدای دي یې خیر کړي؟ ماخو فرمان درکړی و

- صاحب زه به نو څه درته ووایم، ښاروال دومره زورور سړی دی چي زه یې له وېري شکایت هم نه سم کولای

- په دې کي د وېري څه خبره ده، ووایه !

- خبره داسي وه چي ستا فرمان مي یو کال شعبه په شعبه وګرځاوه، خو هیڅ ګټه یې و نه کړه، اخیر ښاروال سپینه خبره راته وکړه، ویل قسم په خدای چي پنځه زره ډالره را نه کړې که په ځمکه کي ستا کولنګ ووهل سي. ما ویل د خدای پر پار دا دی د ولسمشر فرمان راسره دی، ده ویل زه دي نه ولسمشر منم او نه یې فرمان، ورځه لاس دي خلاص !

ددې خبري په اورېدو سره ولسمشر تک سور سو، یو سوړ اسوېلی یې وکیښ، یو ګیلاس اوبه یې پر سر پورته کړې او بیا یې وویل:

معلم صاحب ته ښېغمه اوسه ! دادی دا ټول خلک شاهدان دي، تر څو چي مي دا اوس اوس ستا کار نه وي در خلاص کړی، والله که یا خوب وکړم او یا خوراک، تا ماته مخکي ولي نه ویل؟ اوف اوف څومره به سرګردانه سوی یې ! ته دا بدبختي وګوره، یو معلم بېچاره چي د اولاد په وچه ډوډۍ یې وس نه رسېږي پنځه زره ډالره به له کومه کړي؟ د مجلس خلکو ته یې وویل چي تاسي دلته اوسئ ،زه ډېر ژر بیرته راځم.

ولسمشر زه تر لاس ونیولم او خپل دفتر ته یې بوتلم. هلته یې خپل سکرتر ته وویل چي هله ژر کوه فلانی راخبر کړه ! یاره که ربښتیا ووایم نو له ډېري وارخطایۍ څخه مي د بدن وېښتان جګ جګ ودرېدل، ما ویل ښاروال به خامخا اعدام کړي، ځکه چي د ولسمشر او قانون سپکاوی یې کړی دی، بیا به مي ویل چي څه ښه دی چي دا رشوت خوره خو اعدام کړي، خلک به یې له شره خلاص سي، ده هم د چا دا نه منل، وایي: بازي بازي به ریش بابا بازي؟ بیا مي ویل چي دې ښاروال خو ښه ډېري پیسې ټولي کړي دي او ډېر زورور سړی هم دی، داسي نه وي چي په رشوت ځان خلاص کړي، سبا به تاته یو جنجال جوړ کړي. بیا به مي ځان ته په خپله ډاډ ورکاوه، ما ویل کله چي یو ولسمشر یوه

موضوع دومره جدي وګڼې او دوسیه یې هم په خپله فیصله کړي نود ښاروال به څه حال وي؟ خدای خبر چي دومره موقع به پیدا کړي چي ځان خلاص کړي.

په زړه کي مي کرل او ربېل چي د سکرټر اواز مي تر غوږ سو او هغه سړی یې راوست چي ولسمشر ورته ویلي ول. د ولسمشر تندی وغوړېده، راولاړ سو زه یې په غېږ کي ونیولم او راته ویې ویل: یو متل دی چي وایي: غوټه چي په لاس خلاصېږي غاښ ته حاجت نسته، له ښاروال صاحب سره نور جنجال مه کوه، ستا خو هسي هم څمکه مطلب ده، نه دده محاکمه کول، زه به پنځه زره ډالره درکړم او ور یې کړه.

کله چي مي پیسې په جېب کي واچولې نو ولسمشر لاس پر اوږه راکښېښود او په خندا یې راته وویل: ګوره بیا ونه وایې چي په دولتي ادارو کي د خلکو کارونه ځنډېږي، دادی ستا کار په نیم ساعت کي خلاص سو.

# افغانستان اپریل فول سو

واشنګټن: السلام علیکم

**کابل:** وعلیکم السلام، یاره لکه چي عمر مو ډېر دی، دا اوس مو یاد کړئ، هغه و چي تاسي ټلیفون راوکړ. ښه څنګه یاست؟ دلته خو خیر و خیریت دی، الحمدلله نن مو ستاسي د عسکرو په اړه کوم بد خبر نه دی اورېدلی.

واشنګټن: بد خبر سته خو تاسي ځان ناګاره اچوئ

**کابل:** قسم په خدای که درواغ درته وایو، موږ هر سهار تر خپل ملت د مخه لومړی ستاسي د سلامتۍ خبر اخلو، نن بیخي خیر و خیریت دی

واشنګټن: تاسي هم عجیبه خبري کوئ، په نن ورځ کي هم تاسي وایاست چي خیر و خیریت دی، لږ په مسئولیت زموږ پوښتني ته ځواب راکړئ، موږ ټوکي نه کوو، جدي موضوع ده

**کابل:** صاحب هیله کوو، تاسي خبره لږ واضح کړئ!

واشنګټن: ډېر د افسوس ځای دی چي یوه موضوع په نړیوالو رسنیو کي راځي، موږ دلته په واشنګټن کي په خبرېږو او تاسي هلته نه یاست خبر.

**کابل:** تاسي خو موږ ته وواياست چي څه خبره ده؟ موږ خو په خپله ګناه هیڅ پوه نه سولو

واشنګټن: خبره دا ده چي نن سهار په اروزګان کي سبي ( Sabi ) ورکه سوې ده؟

**کابل:** سبي څوک ده؟

واشنګټن: سبي د استرالیایي ځواکونو یوه ماین پاله سپۍ ده

**کابل:** څه بابا! موږ چي ویل سړی ورک سوی دی، له سپۍ څخه مو هم دومره لویه کیسه جوړه کړه.

واشنګټن: ګورئ دا یوه جدي موضوع ده. که بله ورځ مو داسي خبره وکړه، نو استرالیا څه چي موږ به هم له افغانستان څخه خپل عسکر وباسو، موږ ته خپله یوه سپۍ هم ډېره مهمه ده.

**کابل:** نه نه، هسي يوه ټوکه مو وکړه، بيا دا سي خبره نه کوو، خو ګورئ چي له افغانستان څخه عسکر و نه باسئ، که نه زمونږ نهه منه اوړه به يوه پتيره سي.

**واشنګټن:** تاسي ته به خپلي ملي ګټي ټوکي ښکاري، خو زمونږ ګټي هيڅ وخت د ټوکو په ژبه مه مطرح کوئ، کنه بيا خو پوهېږئ چي مونږ څه کوو

**کابل:** زمونږ ټوکه يوازي د سپي په اړه وه او هغه مو هم ځکه وکړه چي مونږ او تاسي خو سره انډيوالان يو

**واشنګټن:** انډيوالي منډيوالي نسته، انډيوالي يوازي د ګټو وي او نن زمونږ د ګټو خبره ده، ياني يوه غربي سپي ورکه سوې ده او دا ستاسي مسئوليت دی چي بايد ژر تر ژره يې پيدا او مونږ ته يې را وسپارئ

**کابل:** تاسي لطفاً يوه دقيقه تليفون په غوږ کي ولرئ چي مونږ امنيتي ارګانونو ته حکم وکړو چي ستاسي د سپي لټون پيل کړي

**واشينګټن:** نه بابا مونږ يوه دقيقه نه سو کتلای، تر تليفون وروسته ورته ووايا ست

**کابل:** ښه سمه ده خو که اجازه وي يوه خبره کولای سو؟

**واشنګټن:** خبره مو وکړئ !

**کابل:** تاسي به مو په انډيوالانو کي ګڼئ يا نه، خو پر مونږ ډېر ګران ياست، ګورئ څه موده مخکي ستاسي ځواکونو په شينډنډ کي زمونږ ګڼ شمېر ملکي خلک ووژل خو مونږ ستاسي څخه په رسمي ډول يوه تشه ګيله هم و نه کړه.

**واشنګټن:** دا په تاسي پوري اړه لري چي د خپلو خلکو پوښتنه کوئ کنه، خو پر مونږ خپل خلک څه چي خپل سپي هم ډېر ګران دي. ما مخکي هم درته وويل چي دا يوه غربي سپي ده او غربي سپي خاوند لري. زما د خبري مطلب دا دی چي ددې کار پړه ستا سي پر غاړه ده

**کابل:** وبخښئ څنګه زمونږ پر غاړه ده؟

**واشنګټن:** ځکه چي تاسي په دې اتو کالو کي يوازي امنيت هم را نه وست، که تاسي سياسي کفايت او ظرفيت درلودای نو نن به زمونږ يوه باتجربه سپي نه ورکېده

**کابل:** نو په دې کي زمونږ څه ګناه ده؟ امنيت خو نړيوالو تراهګرو خراب کړی دی

**واشنګټن:** نو تاسي خو هم يوازي نه ياست، نړيواله ټولنه اوږه پر اوږه درسره ولاړه ده، ان دا چي ارګ مو هم نړيواله ټولنه ساتي

**کابل:** د یوې خبرې اجازه ده؟

**واشنګټن:** هو ! خو په دې شرط چې تکراري خبره به نه وي

**کابل:** نه که مو خوا بد پرې نه یې کوو

**واشنګټن:** خبره مو وکړئ !

**کابل:** که په ټول ژوند کې د یوې بې ادبۍ اجازه راکوئ نو موږ به ووایو چې نړیوالې ټولنې هم په دې برخه کې خپلې ژمنې نه دي پوره کړي.

**واشنګټن:** کومې ژمنې یې نه دي پوره کړي؟

**کابل:** مثلاً په دومره وخت کې به په افغانستان کې تراهګر وځپو، ستاسې اردو او پولیس به در جوړ کړو، اقتصاد به مو پیاوړی کړو، افغانستان به له سره داسې ورغوو لکه جرمنی، دا به وکړو او ها به وکړو.

**واشنګټن:** پوهېږئ چې زموږ دغه وعدې په کوم تړون پورې اړه لري؟

**کابل:** دا خو ښکاره خبره ده چې د بن په تړون پورې اړه لري

**واشنګټن:** نه د بن په تړون پورې اړه نه لري، که ستاسې یاد وي نو موږ د بن له تړون څخه یوه میاشت مخکې تاسې ته وویل چې موږ په هر ډګر کې ستاسې سره ولاړ یو

**کابل:** هو زموږ یاد دي، نو بیا ولې اوس نه را سره درېږئ؟

**واشنګټن:** اې ساده ګانو ! موږ دا منو چې ستاسې سره مو دغه وعدې کړې دي خو پوهېږئ چې هغه کومه نېټه وه؟

**کابل:** یاره نه مو ده یاد

**واشنګټن:** ستاسې یوه کمزوري دغه ده چې حافظه مو چندان کار نه کوي، موږ دغه خبره د اپریل د میاشتې پر لومړۍ نېټه درته کړې وه، تاسې ته خو معلومه ده چې د اپریل لومړۍ نېټه د درواغو نړیواله ورځ ده.

**کابل:** نو تاسې خو تر هغه وروسته هم خپلې ژمنې نه دي پوره کړي

**واشنګټن:** زموږ ټولې ژمنې په هماغه یوه تړون پورې اړه لري چې د اپریل پر لومړۍ نېټه مو درسره کړې و

**کابل:** اوف ! یانې موږ اپریل فول سولو؟

واشنګټن: نو ستاسي څه خیال دی؟ دا چي په دغه ورځ په ټوله نړۍ کي خلک دروا‌غ وايي دومره مهمه نه ده، مهمه دا ده چي سړی په دغه ورځ ټوله نړۍ وغولوي. لکه څنګه چي امریکایان په نورو ډګرونو کي تر ټولو مخکي دي، دا دی په دروا‌غو کي یې هم لومړی مقام وګاټه، دې ته نو اپریل فول وايي !؟

**کابل:** اوس تاسي خو دا سیالي وګټله، موږ به ملت ته څه ځواب ورکوو؟

واشنګټن: که په دروا‌غو وي نو چل یې ډېر اسانه دی، خو که په رښتیا ویلو وي نو تاسي خپله یوه د **حل** لاره ورته پیدا کړئ !

**کابل:** په دروا‌غو څنګه ملت ته ځواب ورکړو؟

واشنګټن: واه واه ! **عجیبه** خبره مو وکړه، لکه تاسي چي تر اوسه پوري **خپل ملت** ته هیڅکله دروا‌غ نه وي ویلي.

**کابل:** دروا‌غ، دروا‌غ، اخیر نور لا څونه دروا‌غ ؟

واشنګټن: ګورئ موږ او تاسي خو یو بل ښه سره پېژنو، موږ تاسي او تاسي **خپل ملت** ته دروا‌غ وایاست، داسي ښه غوښن او ښکرور دروا‌غ.

**کابل:** موږ خو **تل** ستاسي خوښي ته ګورو، ان دا چي دروا‌غ مو هم **تل** ستاسي په خوښه ویلي دي، اوس هم ستاسي خوښه ده، ایا دروا‌غ بیخي پرېږدو؟

واشنګټن: نه بابا، دروا‌غ مه پرېږدئ، داسي وکړئ چي یو یې موږ ته مه وایاست او **بل** د یوه رسمي فرمان له لاري د **اپریل** لومړۍ نېټه د دروا‌غو ویلو لپاره رسمي ورځ اعلان کړئ

**کابل:** **هغه متل** دی چي وايي ورانه به یې کړې، جوړه به یې نه کړې. وبرېږو چي په بلا مو اخته نه کړئ

واشنګټن: وارخطا کېږئ مه، تاسي اوس هم ددې ډګر اتلان یاست، ستاسي د حکومت په اړه دا مقوله ډېره مشهوره ده چي وايي: که ستاسي ټولي غوړي وعدې راټولي کړل سي نو دومره غوړي ځني ایستل کېږي چي یوه فابریکه یې هم نه سي تولیدولای.

**کابل:** هو صاحب ستاسي خبره رښتیا ده، خو دا فابریکه هم ستاسي په همکارۍ جوړه سوې ده، ښه اوس دا ووایاست چي ددې کار ګټه به څه وي؟

واشنګټن: ګټه به یې دا وي چي که کومه مهمه ژمنه مو کوله نو په همدې ورځ به یې کوئ، مثلاً که د خپل کار کلنی راپور مو ورکاوه او یا مو خپله کومه نوې طرح اعلانول نو باید د اپریل پر لومړۍ نېټه یې اعلان کړئ، بیا که مو خپلې ژمنې پوره هم نه کړې نو ملت به ګیله نه درڅخه کوي.

کابل: خو...

واشنګټن: خو مه پکښې راباسئ، دا د نړیوالې ټولنې امر دی، پوه سوئ؟

کابل: نه مطلب مې دا نه و چي ستاسي خبره نه منو، موږ ویل چي په ګټو یې لږ پوه سو

واشنګټن: یاره تاسي خو په نیمه هیڅ نه پوهېږئ، هسې په موږ سپیني خبري کوئ. نه وینئ چي موږ د تراهګرۍ په نوم په افغانستان کي څنګه خپل نظامي حضور ته مشروعیت ورکړی دی؟ دغسي تاسي هم خپلو درواغو ته مشروعیت ورکړئ. نن داسي یو وخت دی چي باید سړی د هر کار لپاره جواز ولري. تاسي ګورئ نن ورځ که څوک غواړي چي په افغانستان کي خلک مړه او یا برمته کړي نو امنیتي کمپنۍ جوړوي، که غواړي چي غلا وکړي نو ( اینجوګاني ) جوړوي. تاسي هم لومړۍ د درواغو لپاره یو د اوړو پېزه جوړه کړئ او بیا یې نر غوندي وایاست !

کابل: پر غبرګو سترګو دغسي به وکړو

واشنګټن: دا کار ډېر ژر تجربه کړئ، موږ باور لرو چي خامخا ښه نتیجه ورکوي، ښه نور نو د خدای په امان

کابل: په مخه مو ښه، ډاډه اوسئ چي ستاسي سپېره به هیڅکله ضایع نه سي، له ټلیفون کولو څخه مو ډېره ډېره مننه .

سبا سهار له ارګ څخه یو فرمان صادر سو. په فرمان کي د اپریل لومړۍ نېټه چي د وري د میاشتي له دوولسمي نېټي سره سمون خوري د درواغو ویلو لپاره د رسمي ورځي په صفت اعلان سوه. په فرمان کي دا هم راغلي وه چي په دې ورځ کي دولتي چارواکي، سیاسي ګوندونه، مدني ټولني او اینجوګاني د درواغو ویلو اجازه لري خو د ملت لپاره درواغ ویل ګناه ده. څه موده وروسته د حساب ورکولو ورځ د اپریل لومړۍ نېټه وټاکل سوه، دغه ډول په همدې ورځ د نوي منتخب دولت طرح هم اعلان سوه چي امنیت، له طالبانو سره خبري اتري، د تراهګرۍ پر وړاندي مبارزه، د کوکنارو کښت، د فساد له منځه وړل، بیا رغونه او د ملي اردو او پولیسو جوړول یې مهمي برخي وې.

---

(۱): ازادۍ راډیو خبر ورکړ چي یوه بم موندونکې استرالیایي سپۍ چي د

( ۲۰۰۸ ) ميلادي کال په سپتمبر کي په اروزګان کي د جګړې پر مهال ورکه سوې وه، څوارلس مياشتي وروسته، ياني د ۲۰۱۰ ميلادي کال د نوامبر د مياشتي پر (۱۲) نېټه پيدا او بيرته د استراليايي ځواکونو اډې ته ورسول سوه.

د استراليا صدراعظم (کيون رډ ) په دغه ورځ نابېره اروزګان ته سفر وکړ او د خپلي وطنداري سپې په راخوشي کېدو يې خورا ډېره خوښي وښووده.

# د ړندو حکومت

په افغانستان کي په هر یوه ساعت کي شپږ لوړپوړي دولتي چارواکي په سترګو ړند یږي. دغه خبره په افغانستان کي د نړیوال روغتیایي سازمان استازي ډاکټر پیټر ګراژ د لید د نړیوالي ورځي په مناسبت وکړل، ده زیاته کړه چي ددغو ړاندو په سلو کي شل یې بهرنیان او پاته نور یې افغانان دي. په بهرنیو ړاندو کي ملکي خلک هم شامل دي، خو افغانان ټول لوړپوړي دولتي چارواکي او یا په دولت پوري تړلي خلک دي.

یاد سوي ړانده اکثره د دوبي په موسم کي د افغانستان د کابل په شیرپور، وزیر اکبر خان مېنه، خوشال خان مېنه، کارته سه، کارته چار، کارته پروان او خیر خانه مېنه کي او سېږي خو په ژمي کي دبی، امریکا، انګلستان، جرمني، بنکاک، سویس او داسي نورو بهرنیو هیوادونو ته ځي. د دوی کاروبار ډېر سترې دی، ځکه چي ټوله ورځ د ډالرو جوالیتوب کوي او یو ګړی هم ارام نه کښېني. دغه ړانده خلک د دولت په مهمو پوستونو کي کار کوي، لکه په ولسي جرګه کي د دولت پر کړنو د څار کمیسیون، د قانون پر پلي کېدو د نظارت کمېټه، د فساد پر ضد د څار کمېټه، له افغانستان سره د بهرنیو مرستو د څار کمېټه، د انتخاباتو د څار کمېټه، پر رسنیو د نظارت کمېسیون، د محبسونو د نظارت کمیسیون، د اروپایي ټولني له خوا د افغانستان پر انتخاباتو د نظارت اداره، ملي امنیت، لویه څارنوالي، یوناما، د بشري حقونو د څار کمیسیون او نورو مهمو ادارو کي کار کوي.

ډاکټر ګراژ وویل چي ددغو ناروغانو پر سترګو لومړی د ډالرو پردې غوړېږي چي بیا یې ورو ورو لید کمېږي او په پای کي یو مخ ړند یږي. کله چي ړوند سو بیا یوازي ډالر او د ډالرو پیدا کولو لار او ګودرویني. ډاکټر ګراژ اندېښنه وښووله چي دا ستونزه په افغانستان کي مخ پر ډېرېدو ده، ځکه چي دا ناروغي ساري او میراثي ده، یاني هم له مور او پلار څخه اولاد ته لېږدول کېږي او هم هغه څوک په اخته کېږي چي له دوی سره یو ځای کار کوي. که څه هم نوري ساري ناروغۍ د تماس، هوا، ګډ خوراک او نورو لارو له ناروغ څخه روغ سړي ته ورځي خو دا ناروغي یوازي د ګډ فکر او کار کولو له لاري روغ انسان ته لېږدول کېږي. ډاکټر ګراژ وویل چي په دې ناروغۍ هغه خلک ډېر ژر اخته کېږي چي پخوا یې پر سترګو د ایراني تومنو، پاکستانۍ کالدارو او روسي روبلو پردې غوړېدلي وي. په دې ناروغۍ که څه هم په هر موسم کي انسان اخته کېدای سي خو د ولایتي شوراګانو، ولسي جرګې او ولسمشرۍ انتخاباتو او له افغانستان سره د مرستو په باب کنفرانسونو پر مهال په دې ناروغۍ د اخته کېدو چانس تر بل هر وخت ډېر دی.

اتیا کلن بوډا چي د نوم له ښوولو یې ډډه کوله وویل چي زوی یې په غبرګو سترګو ړوند دی، دی وایي چي زوی یې مخکي په سترګو جوړ او هر څه یې سم لیدای سوای، خو له کومي ورځي راهیسي چي یې د انتخاباتو دکمیسیون د نظارت په څانګه کي کار شروع کړی نو ورځ په ورځ یې د سترګو لید کمېده چي وروسته بیخي ړوند سو. دی وایي چي که څه هم دوی اوس په بوجیو بوجیو ډالر لري خو ستونزه دا ده چي زوی یې یوازي ډالر ویني او ډالر پېژني، نور

نه مور او پلار پېژني او نه هم نور خپلوان ، ان دا چي خپل ولس بيخي ځيني هېر سوی دی. دغه سړی وايي چي زوی يې نه يوازي دا چي له ډالرو پرته څوک نه ويني، بلکي څه اوري هم نه، بس يوازي هغه څه اوري چي د ډالرو په باب وي.

يو روغتيايي کارپوه چي ده هم له نوم ښوولو ډډه وکړه د دې ناروغۍ د نښو نښانو په باب وويل چي، دا ناروغي د ډالرو په اندازې او سياسي موقف پوري اړه لري، ياني کله چي د يو چا ډالر بيخي ډېر او سياسي دريځ يې لوړ وي، نو نه يوازي دا چي په سترګو ړند ېږي، بلکي په غوږو کوڼ او پر دې سربېره يې يوه سترګه هم رپېږي. دی زياتوي چي دا ناروغي يو څو کاله يوازي له سترګو سره کار لري خو وروسته د انسان عقل هم اغېزمن کوي، ياني وروسته د ناروغ عقل يوازي د ډالرو په اړه کار کوي او بس.

د جمهوري رياست يوه وياند وويل چي په دې ورځو کي د نړيوالي ټولني له خوا پر افغان دولت فشار ډېر سوی چي په دولت کي اداري فساد ډېر سوی او دولت پر خپلو فعاليتونو واک او کنټرول له لاسه ورکړی دی، ځکه نو دولت پرېکړه کړې چي د دولت پر مهمو پوستونو ړانده خلک وګماري چي د دولت او بهرنيانو ټولي کړني او فعاليتونه په خپلو سترګو وويني او په دقيقه توګه يې وڅاري.

د افغانستان د دولتي روغتيا وزارت وايي چي دا ناروغي په دولت کي دومره ډېره سوې چي ان تر ارګه پوري هم رسېدلې ده. دا وزارت اندېښنه ښيي چي که د دې ناروغۍ مخه و نه نيول سي نو په راتلونکو څلورو کالو کي به د دولت ټول مامورين په سترګو ړانده او په غوږو کاڼه سي.

له بلي خوا ولسي خلک د دې ناروغۍ په اړه ژوره اندېښنه لري. د کابل ولايت يو ځوان چي ګرالبي يې شکېدلي او د ميرويس ميدان پر چوک د مزدورۍ لپاره ولاړ دی وايي چي دی له يوې اوونۍ راهيسي د خوارۍ او مزدورۍ لپاره راځي خو کار نه مومي او بېرته کور ته وږی تږی ځي، دی وايي چي دولتي چارواکي په سترګو ړانده سوي او د دوی لوږه ، تنده او بېوزلي ګردسره په سترګو نه ويني.

د کندهار د شاه وليکوټ ولسوالۍ يوه سپين سرې ښځه چي د بهرنيو ځواکونو په بمباريو کي يې ټوله کورنۍ وژل سوې او خپله يې هم يو لاس پرې سوی وايي چي، دولتي چارواکي نه يوازي دا چي په سترګو ړانده سوي، بلکي په غوږو هم کاڼه سوي دي، ځکه چي د دوی ژړاوي او نارې اسمان ته رسېږي خو چارواکي يې نه اوري.

او سمهال عام افغانان په دې فکر کي دي چي څنګه د دې خطرناکي ناروغۍ مخه ونيسي، خولا تر اوسه د دې ناروغۍ کوم موثر علاج نه دی موندل سوی. په افغانستان کي د يوه خصوصي بانک مشر، ډالر پوه زمری خان وايي چي دا ناروغي هيڅ علاج نه لري، خو دا چي ملت ناخوښه دی نو يوه لاره يې دا ده چي نړيواله ټولنه له افغانستان

سره خپلي ډالري مرستي نوري هم زياتي کړي، ددې کار په نتيجه کي به د ټول ملت پر سترګو د ډالرو پرده وغوړېږي، بيا به نو ټول ملت ړوند وي او د افغان دولت او نړيوالي ټولني کړه وړه به نهويني.

# بیا د پیسو کڅوړي راغلې ...

مدعي: قاضي صاحب دا سړی درواغ وايي، دا ځمکه زما ده او ده په زوره راځخه نیولې ده، ها دا یې قباله ده !

قاضي: څه بابا قواله موا له په درد نه خوري، ورسه شاهدان راوله !

مدعي: سمه ده صاحب، د دوو شاهدانو پر ځای به شل شاهدان راولم

قاضي: ګوره پام دي وي چې د افغانانو شاهدي نه منل کېږي، باید بهرني شاهدان راولې او بل دا چې په دې مسئله کې د نړیوالي ټولني اجماع هم ضروري ده

مدعي: قاضي صاحب شاهدان پېژنم، خو دا جماع یې څه شی ده؟

قاضي: بدبخته جماع نه، اجماع. اجماع دا ده چې باید ځو زره نفره شاهدي ورکړي چې دا ځمکه رښتیا ستاده

مدعي: نه سي کېدای چې د خارجي شاهدانو پر ځای افغاني شاهدان راولم؟

قاضي: که مورې خپلي لانجې خپله اوارولای سوای نو بیا نړیوالي ټولني ته څه ضرورت و؟ ته تر اوسه هم د فیل په غوږ کي ویده یې، اوس هیڅ مسئله له نړیوالي ټولني پرته نه حل کېږي، پوه سوې؟

مدعي: قاضي صاحب د خدای پر پار یوه لاره خو را وښیه، زه اوس څه وکړم؟

قاضي: لاره دا ده چې زر نفره امریکایي شاهدان راوله، دا شاهدان باید اوږدې څڼې ولري خو باید ږیره او برېتونه یې پاک خریلي وي او که دا کار نه سې کولای نو بیا بل کار وکړه !

مدعي: کوم کار؟

قاضي: اتیا زره پاکستاني شاهدان راوله، دې شاهدانو باید ږیري او برېتونه خریلي او قره قلي خولۍ یې پر سر وي، خو که دا کار هم نه سې کولای نو یوه بله لار هم سته

مدعي: کومه لاره؟

قاضي: یو ملیون ایراني شاهدان راوله، دا شاهدان باید ښه مبارکه سپینه ږیره او برېتونه ولري او ددې تر څنګ یې باید توري لنګوټې هم تړلي وي

مدعي: قاضي صاحب ستا قربان سم، زه په ټوله ژوند کي خارج ملک ته نه یم تللی، دومره شاهدان به څنګه راولم؟

قاضي: خارج ته ولي ځې؟ وطن له امریکایانو، ایرانیانو او پاکستانیانو ډک دی، هر څومره چي وغواړې پیدا کېږي، خیر زه به لاره دروښیم، پولیسه ورسه دی یوه کړه!

پولیس: پر غبرګو سترګو قاضي صاحب

پولیس تر لاس ونیولم، یو ګوښه ځای ته یې بوتلم او په خندا یې راته وویل: څومره ساده سړی یې، قاضي صاحب څو واره په اشاره کي درته وویل، خو ته سر نه خلاصوې. له امریکایي شاهدانو څخه د قاضي صاحب مطلب دا و چي زر امریکایي ډالره راوړه او له پاکستاني شاهدانو څخه یې هدف اتیا زره کالداري دي، دغه ډول ایراني شاهدان دا مانا چي یو ملیون تومنه راوړه. ګوره سر خلاص کړه، که په دې محکمه کي دي دعوه بایلول، نو په بله محکمه کي تر دې ډېر شاهدان درڅخه غواړي، نور نو ستا خوښه ده. ته بیا هم بختور سړی یې چي دوسیه دي په یوه عادل قاضي پوري اړه لري، ددې محکمې په ټولو قاضیانو کي تر دې بل عادل او زړه سواند قاضي نسته. ما وپوښتل چي یو څه افغانۍ لرم، قاضي صاحب ولي افغانۍ نه اخلي؟ پولیس په خندا وویل: په ټول دولت کي دغه حال دی، ان دا چي زموږ ارګ ته هم په کڅوړو کي ډالر، کالداري او تومنونه راځي، دا نن هم څو کڅوړي ارګ ته راغلې. زه هم له محکمې راووتم چي د قاضي صاحب لپاره پیسې برابري کړم، دا چي پیسو ته مې ډېره اړتیا درلوده نو د پیسو کڅوړي مې له یاده نه وتلې، ورو مې له ځانه سره وویل:

بیا د پیسو کڅوړي راغلې

یا به ډالر وي یا روپۍ یا تومنونه

# د تېلو ولاړ ټانکرونه او د ارګ روان بانډارونه

قهرجن مظاهرچیان د سفارت مخ ته راټول سوي ول، د ( مړ دي وي ) چیغي لا نه وې ارامي سوي چي د هغه هیواد د ولسمشر له عکس څخه لمبې پورته سوې، وروسته پر سفارت د ورستو هګیو باران جوړ سو او د سفارت پر دروازه ځړول سوی عکس په هګیو تک ژیړ سو ، د هګیو په باران کي خلکو نوري هم په زوره چیغي کړې:

- یوه ورځ یې نه ده، دا ملک هره ورځ زموږ سره ناروا کوي
- کله زموږ خلک په ګولیو ولي
- کله یې په زندانو کي اچوي
- کله یې اعداموي
- کله یې پر مخ تېزاب ورپاشي
- لا یې زړه نه دی سوړ سوی، دا دی اوس یې زموږ د تیلو ټانکرونه درولي دي، خو موږ یې هم نه پرېږدو او خپل کسات خامخا ځني اخلو.

په ارګ کي په دې باب د کابینې بیړنۍ غونډه رابلل سوې وه، ولسمشر په ډېر اواز وویل: ایران خو نه زموږ د ګاونډیتوب او نه د انډیوالۍ خاطر وکړ، ان دا چي ما خپل لومړی مرستیال ور واستاوه، یوازي مرستیال نه، بلکي مارشال مي هم ورواستاوه، دا سي یو مارشال چي د ټولي نړۍ پوځي ځواکونو ته یې لاس ورکړی دی، که نور څه نه وي نو د مارشال صاحب د الوتکي ټانکۍ خو به یې له تېلو ورډکه کړې وای، زړه مي غواړي چي د هلمند اوبه پر بندي کړم.

د اوبو او برېښنا وزیر په بیړه کي ګوتي تېري کړې او ویې ویل: صاحب پام کوه پام ! اوس خو یې یوازي تېل را باندي بند کړي دي، خو که دا کار مو وکړ نو زما څخه به وزارت هم واخلي. د ولسمشر دوهم مرستیال پر سر لنګوټه ټینګه کړه او ویې ویل: وزیر صاحب ښه وایي، هغوی پر دې کار هم ډېر په قهر دي چي زموږ خلکو ولي د دوی د سفارت مخ ته مظاهره کړې ده؟ اوس هم که هغوی خبر سول چي موږ په دې اړه د وزیرانو غونډه رابللې ده، نو ما به له مرستیالیه لیري کړي او پر تا سي به خدای دي یې نه کوي د پیسو کڅوړي بندي کړي. ولسمشر یې خبره ونیول او ویې ویل: نه نه نه ! ډېر پام به کوئ چي کڅوړي بندي نه سي، باید ددې غونډې راپور هم په رسنیو کي خپور نه سي، کنه نو زموږ یو من اوړه به یوه پتیره سي.

د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر خو واره ژبه پر شونډو تېره کړه، د قره قل د پوستکي پکول یې پر تندي را ښوړ کړ او ویې ویل: رئیس صاحب تاسي بېغمه اوسئ، تر څو چي زه په دې وزارت کي یم نو له دولتي رسنیو څخه به هیڅ داسي څه خپاره نه سي چي په هغه ایران خوابدی کېږي، ان دا چي مونږ د سفارت مخ ته د مظاهرو راپور هم خپور نه کړ. د ولسمشر تندی ورین سو او ویې ویل: افرین! دې ته نو ډیپلوماسي وایي، خو په هر صورت باید یوه د اوړو پزه جوړه سي چي ملت ارام سي، بیخي یې غوږونه راوخوړل.

په دې وخت کي د بهرنیو چارو وزیر په غاړه کي ژېړه نیکټایي ټینګه کړه او ویې ویل: رئیس صاحب تاسي ډېر مهربانه یاست او په دې برخه کي له ګاونډي هیواد سره ډېر له زړه سوي ډک چلند کوئ خو زه دومره حوصله نه لرم، ته نه یې خبر، ما داسي غاښن ماتوونکی ځواب ورکړ چي تر اوسه به هیڅا نه وي ورکړی. ناڅاپه د ولسمشر او وزیرانو سرونه د بهرنیو چارو د وزیر خوا ته کاږه سول او یو په بل پسي چیغي پورته سوې: خدایه فضل وکړې، څه دي وکړل؟ ولسمشر په وارخطایي وپوښتل: خدای دي خوار کړه لکه چي کور دي پر چرګه راباز کړ که ځنګه؟ د بهرنیو چارو وزیر په فاتحانه ډول غاړه اوږده کړه او ویې ویل: کله چي د سفارت مخ ته مظاهره وسوه نو د ایران د بهرنیو چارو وزیر ما ته وویل: په یوه ساعت کي په دې باب خبړنه وکړه چي د دې مظاهرې تر شا د چا لاس و او بیا دغه معلومات او اسناد مونږ ته را وسپاره، خو ما یې هم داسي څپلۍ پر پښو ور سمي کړې چي څه درته ووایم. ولسمشر په وارخطایي وویل: د ظالم زویه ژر ووایه څه دي ورته وویل؟ د بهرنیو چارو وزیر سوکه وویل: ما ربښتیا هم په یوه ساعت کي څېړنه وکړل، خو دوی ته مي دا معلومات او اسناد د یوه ساعت پر ځای دوه ساعته وروسته ور وسپارل البته دا خبره دي یوازي ستاسي سره وي، تر اوسه هیڅوک نه دي خبر.

ولسمشر په خندا وویل: یاره افرین! ډېر دې ښه کړي دي، دا ستا تر خبري پوري ما ته یوه کیسه را یاده سوه. وایي چي د یوه چرسي غوړو ته موږک ورلوېدلی و، چرسي ملا ته راغی ویل، ملاصاحب غوړو ته مي موږک ور لوېدلی دی یوه چاره راوښیه؟ خو ګوره پام دي وي چي غوړي مردار نه کړې، نور نو ستا خوښه ده. ملا بېچاره حیران سو چي اوس څه وکړي؟ تر لږ چورت وهلو وروسته یې چرسي ته وویل: راغلي او پېچلي دي په کتابو کي د متاخرینو چي که یوه موږک منډې وهلې له وېرې د پیشي، پام یې نه و او ولوېدئ په غوړو کي د یو چا، پوره و اجل ددغه موږک او هلته مړ سو، نو پس موږک پاک شهید دی او د شهادت له برکته یې غوړي هم حلال دي، الا په مانا د لاکن ده، لاکن دومره خبره ده چي که موږک غوښتل وخوري غوړي بې اجازې او دا موږک مړ سو په غوړو کي، نو د ګېډې مختار ملاصاحب وایي چي موږک حرام خوره دی، نو په دې صورت کي موږک مردار، خو غوړي حلال دي. له دې کیسې سره ټولو وزیرانو وخندل، ولسمشر وویل: یاره وزیر صاحب تاسي هم داسي کار کړی دی چي غوړي مو نه دي مردار کړي، یاني د پیسو له کڅوړو سره مو هیڅ غرض نه دی کړی.

يوه وزير چي خوله يې بې خونده نيولې وه او داسي ښکارېده چي خندا نه ورځي خو د نورو لپاره خاندي، ترخه خندا وکړه او ويې ويل: دا زموږ او ستاسي غوږي به څنګه سي، دا حلال دي که مردار؟ دې غوږو ته خو د يوه پر ځای څو موږکان ورلوېدلي دي. د حج او اوقافو وزير يې خبره ونيول: څرنګه چي دا يوه فقهي مسئله ده نو په دې باب به زه يو څه رڼا واچوم. خبره دا ده چي دا موږکان حلال دي، ځکه چي د مضرو او مردارو موږکانو مخه يې نيولې ده، نو يو شی چي خپله حلال وي بل شی نه مرداروي. ورپسې د عامي روغتيا وزير وويل: وزير صاحب رښتيا وايي، دا لکه د انسان په وجود کي چي يو ډول ګټور مکروبونه سته، دا مکروبونه داسي خوی لري چي مضر مکروبونه خوري او له منځه يې وړي، نو انسان ته دد غه ډول مکروبونو موجوديت ضروري خو څه، چي بيخي لازمي دی. د ماليې وزير ورپسي وويل: اې وروره، ستا ولي زړه درد کوي؟ که موږکان پردي دي نو غوږي خو هم زموږ نه دي، يوازې د غوږو تيم (ډبه) زموږ ده.

په دې وخت کي يو چا د پيسو يوه کڅوړه د ولسمشر مخ ته کښېښوووله، دا کڅوړه د افغانستان له بيرغ څخه جوړه سوې وه، ولسمشر په داسي حال کي چي په برېتو کي يې خندل په کڅوړه ګوتي ووهلې، ټولو وزيرانو په کڅوړه کي سترګي داسي ښخي کړې لکه د نانوايي مخ ته چي غريبان راټول وي او ډوډۍ ته يې سترګي نيولې وي، تر لږ ځنډ وروسته کڅوړه خلاصه سوه، خو خبره بل ډول وه، دا ځل کڅوړه له پيسو نه، بلکي له تيلو ډکه وه. لکه د پيريانو په مجلس کي چي بسم الله وويل سي، ټول وزيران پټه خوله کښېناستل او وارخطا وارخطا يې يو بل ته سره وکتل، د ولسمشر دوهم مرستيال د خبرو وار ونيو او په ژړغوني اواز يې وويل: موږ او تاسي يوه لويه اشتباه وکړه چي خپل دوست هيواد ته مو يو ساعت ناوخته معلومات ورکړل، ځکه خو هغوی دا ځل موږ ته په کڅوړه کي د پيسو پر ځای تېل راواستول، تر دې خبري وروسته په مجلس کي چوپتيا خپره سوه او غونډه هم پای ته ورسېده.

کله چي وزيران له ارګ څخه راوتل نو په دې وخت کي تېز باد چلېده، خو د ارګ پر لويه دروازه ځړول سوی ملي بيرغ نه رپېده، لکه افغان دولت چي د ګاونډي هيواد په خوښه پر خپل ملي غرور تېل شيندلي او اوس نيت لري چي اور ورواچوي.

# جنرال فیل

په مسجد کې د فاتحې کمبلې اوارې دي، قاري په لوړ اواز قرائت وايي، خلک ليکه ليکه ورته ناست دي، په چا سر خړېږي او چا بيا سر پر زنګانه ايښی دی، ټول پټه خوله ناست او قرائت ته يې غوږ نيولی دی. يوه شيبه وروسته قرائت خلاص سو، دعا هم تمامه سوه، له دې سره سم د خلکو اوازونه پورته سول، اکثرو خلکو د وژل سويو خلکو د ژوند په باب خبرې سره کولې. دا فاتحه د هغو ملکي خلکو لپاره وه چې پرون د بهرنيانو په هوايي بريد کې وژل سوي ول. يو څو دقيقې وروسته بيا قاري غاړه تازه کړه او قرائت يې پيل کړ، په مسجد کې چوپتيا خپره سوه، خو ډېر ژر د والي د تيليفون زنګ دغه چوپتيا ماته کړه. والي وويل: بلې !

جنرال فيل: د سپيشل فورس له دفتر څخه جنرال فيل خبري کوم

والي: اوهو جنرال صاحب جوړ په خير، جوړ په خير، امر وکړئ صاحب !

جنرال فيل: موږ هم د ولسي خلکو په وژنه سخت خواشيني يو او غواړو چي تاسي او د وژل سويو خلکو خپلوانو ته فاتحه درکړو

والي: نو تاسي به موږ ته فاتحه څنګه راکړئ؟ ځکه چي فاتحه په مسجد کي ده او خلک نه غواړي چي تاسي دي مسجد ته راسئ

جنرال فيل: نو داسي به وکړو چي دغه خلک به خپل دفتر ته راوغواړو او دلته به فاتحه ورکړو، خو دوه نور ټکي هم واوره !

والي: مهرباني وکړئ !

جنرال فيل: موږ په پام کي لرو د وژل سويو خلکو له وارثينو سره مرسته وکړو او ددې تر څنګ پر هغوی يو ښه زېری هم وکړو

والي: د څه شي زېری؟

جنرال فيل: دا زېری د هر افغان هيله ده، خو دا زېری ستا لپاره نه دی

والي: بس ستاسي خوښه ده، اوس امر وکړئ چي زه په دې لاره کي څه کولای سم؟

جنرال فيل: تاسي د يو څو مهمو قومي مشرانو او شهيدانو د وارثينو يو لست جوړ کړئ، هغوی ته ووايأست چي سبا زموږ مېلمانه دي، تاسي هم ورسره راسئ

والي: پر غبرګو سترګو صاحب، همداسي به وکړم

د سپیشل فورس یا د ځانګړو قواوو په دفتر کي قومي مشران، د شهیدانو وارثین او بهرني جنرالان ناست دي.
جنرال فیل ستېج ته راولاړ سو او ویې ویل: موږ د ملکي خلکو په وژنه سخت خواشیني یو، خدای دي دوی وبخښي او تاسي ته دي د زړه صبر درکړي. زموږ په کلتور کي د خواشینۍ څرګندولو لپاره یو څو دقیقې پټه خوله کښېنو خو نن دا کار نه سو کولای، ځکه چي موږ ته وخت ډېر مهم دی، ستاسي د امنیت، سولي او خوشاله ژوند په باب ډېر مسئولیتونه راپه غاړه دي، نو ښه به دا وي چي دا پنځه دقیقې وخت هم ستاسي په خدمت کي ولګوو.
تاسي یې وینئ چي د تالار مخ ته زموږ سپي ولاړ دی او ډېر غاپي، موږ د خپل سپي غپا هم نه بندوو، ځکه دی هم زموږ په شان دروند مسئولیت لري او ستاسي د خدمت لپاره افغانستان ته راغلی دی، خو دا چي ستاسي سل نفره مړه او یونیم سل نور ټپیان دي نو ستاسي سره د خواخوږۍ او غم شریکۍ په اړه یو کار کولای سو، هغه دا چي د پنځو دقیقو لپاره به سپی یو څه لیري بوزو چي تاسي یې غپا وا نه وروئ.

تر دې وروسته د هر مېلمه مخ ته یو یو تړلی کارتن کښېښوول سو. جنرال فیل وویل: موږ ستاسي سره وعده کړې وه چي مرسته به درسره کوو او ددې تر څنګ به یو ښه زېری هم دربانديي کوو. دا دی موږ نن خپله وعده پوره کړه. زېری دا دی چي دلته به سوله راځي، ان دا چي سوله به ستاسي کورونو ته راځي. په هر کارتن کي یو دانه کاغذ باد دی چي سوله پر لیکل سوې ده، کاغذباد مرسته ده او پر کاغذباد د سولي کلمه زېری دی. دا کاغذبادونه د هغو څو میلیوني مرستو له جملې څخه دي چي زموږ هیواد د سولي راوستلو لپاره ستاسي سره کړي دي. ګورئ دا کاغذبادونه د کوچنیانو لپاره نه، بلکې د مشرانو لپاره دي، که تاسي دا کاغذبادونه په خپلو کورونو کي وساتئ نو دا به دا مانا ولري چي موږ ستاسي کورونو ته سوله راوړې ده.

د رخصتۍ پر مهال جنرال فیل والي ګوښه کړ، په غوږ کي یې یو څه ورته وویل او بیایې یو پاکټ ورکړ. والي چي پاکټ خلاص کړ نو ژر یې په جیب کي واچاوه، داړي یې جنګي کړې او دومره خوشاله سو لکه سپي ته چي هډوکی ور واچوي.

# قوماندان پنچرمېن

د قوماندان پنچرمين اصلي نوم غلام جان و ، پخوا يې په کابل کې د پنچرۍ نيولو دوکان درلود ، کله چې په کابل کې تنظيمي غويو ښکرونه يو د بل په خېټو سره ننه ايستل نو ده هم دوکان پرېښود ، ځو جنګي غوايي يې سره راټول او د نورو په شان يې لار ونيوله. غلام جان اوس پنچرمېن نه، بلکې چېرمېن دی، بيخي يې سر ته لاس نه رسېږي،اوس نو هيڅوک هم هغه ته مخامخ د پنچير مينې خبره نه سي وريادولای، خو پشلا ( په غياب ) کې يې اوس هم قوماندان پنچرمين بولي. کله چې په بن کې د جنګي تنظيمونو لپاره غوا لنګه سوه، نود غلام جان خوله هم د يو چا پر لاس ددې غوا تيو رودلو ته جوړه سوه، ددې غوا شيدې دومره برکتي وې چې په لږ وخت کې قوماندان پنچرمين لومړی د پوليسو د يوې حوزې قوماندان او وروسته د يوه مهم ولايت د امنيې قومندان وټاکل سو. په حقيقت کې قوماندان پنچرمېن اوس هم پنچرمېن دی، تو پير يې يوازې دومره دی چې پخوا به يې په خيرنو او غوړو کاليو کې د موټرو پنچرۍ نيولې خو اوس د جنرالۍ په دريشۍ کې د پخوانۍ پنچر سوې ډيموکراسۍ پنچري ور نيسي، بل توپير يې دا دی چې دا نوې پنچر مېنې خورا ډېره مزدوري لري، ځکه چې د يوه ملت د سرنوشت خبره وه، همدا دليل دی چې قوماندان پنچرمېن په لږ وخت کې ځو کورونه رانيول او داسې مزی او چاغ سو لکه د لاندې مړ، هغه د چا خبره داسي څټ يې وکړ چې تر شا نه سي کتلای.

قوماندان پنچرمېن چې پر ټېر يې د اتلولۍ ځو مډالونه ځړېدل، راولاړ سو، پر لاري ځولۍ ځولۍ کېده، بس ايله يې ځان تر سټېج پوري راورساوه، پر سټېج يې تکيه ولګوله، غاړه يې تازه کړه او ويې ويل: خدای مو راوله، خدای مو راوله

تاسي مو نن ددې لپاره راغوښتي ياست چې ستاسي سره خپلې دوې لويې برياوې يا لاس ته راوړني شريکي کړو. تاسي ته خو معلومه ده چې زموږ زړه ورو او مېړنيو ملي پوليسو هيڅ وخت د خپلو هيوادوالو د ساتني په لاره کې خپل وس نه دی سپمولی، تل يې جنايتکاران او د وطن دښمنان نيولي او د قانون منګولو ته سپارلي دي. يوه خبره خو دا ده چې نن موږ يو ټن شراب نيولي دي، تاسي ګورئ يو ټن شراب په خوله ياد ېږي داسي لږ شی يې مه ګڼئ.

دا قيمتي شراب له يوه بهرني هيواد څخه راوارد سوي او په يوه کانتېنر کې ځای پر ځای سوي ول. عجيبه دا ده چې دغه شراب د ګمرک مامورينو هم کتلي او هم يې محصول کړي دي، خو دې ته يې نه دي پام سوي چې دا شراب دي، مګر زموږ ويښو پوليسو دغه شراب کشف او ونيول چې دا دی ستاسي په مخ کې پراته دي. بله لاس ته راوړنه مو دا ده چې يو ډېر خطرناکه ځانمرګی مو نيولی دی. دا ځانمرګی چې په ځان پوري يې چاودېدونکي توکي تړلي ول، غوښتل چې د والي صاحب دفتر ته ننوزي او ځان والوزوي، خو له نېکه مرغه زموږ پوليسو په ډېر مهارت دی ونيو.

ځانمرګی اوس ډېر وارخطا دی او خبري نه سي کولای، موږ به لومړی له ده څخه پلټنې وکړو، بیا به تاسي ته معلومات درکړو، خو اوس تاسي کولای سئ چي شراب له نژدې وګورئ.

خبریالان کېمرې په لاس د شرابو پر کارتنونو راټول سول، هر کارتن چي به یې کوت نو هغه به خالي و، په دې وخت کي یوه خبریال وویل چي قوماندان صاحب شراب چېري دي؟ دا کارتنونه خو ټول خالي دي ! د قوماندان پنچرمېن تندی تریو سو، خپل مرستیال ته په غوږ کي وبونګېده او بیا یې وویل: زه څه خبر یم چي شراب څه سول، ما خو به نه وي څښلي؟ دا زما سره ولاړ ټول پولیس شاهدان دي چي موږ یو ټن شراب ونیول خو دا چي اوس ولي نسته زه هم نه پوهېږم، کېدای سي چي په لاره کي لوېدلي وي. کله چي خبریالانو ځان نورو پوښتنو ته جوړاوه نو قوماندان پنچرمېن وویل: زه بخښنه غواړم پر ما ډېر ناوخته دی، یو ډېر ضروري کار لرم، کېدای سي چي په دې اړه نور معلومات په ټیلیفون کي درسره شریک کړم، د اوس لپاره د خدای پامان.

قوماندان پنچرمېن له ولاړېدو سره سم خپل لاسي بکس تر لاستي ونیو او پورته یې کړ، خو د بکس ځنځیر خلاص پاته سوی و، له پورته کېدو سره سم دوې پلې سو او د شرابو یو ښه غټ بوتل ځني راولوېد. په دې وخت کي له قوماندان پنچرمېن څخه د خولې چم هېر سو، خوله یې ویړه ونیول او خبریالانو ته یې وویل: تاسي ته خو معلومه ده چي دښمنان تل موږ ته په کمین کي ناست دي، دا دی یو بوتل یې زما په بکس کي ایښی دی او غواړي چي ما تور کړي، خو دا ارمان به یې هیڅکله پوره نه سي. په هر صورت وایي بنده حیران خدای پر مهربان، زه حیران وم چي د شرابو یو بوتل به له کومه کړم چي تاسي ته یې د بېلګې په ډول درښکاره کړم، بس دا دی یو بوتل پیدا سو، تاسي کولای سئ چي دا بوتل له نژدې وګورئ، نور نو داسي یې وبولئ چي ټول شراب همداسي ول. قوماندان پنچرمېن یوه شیبه شا و خوا کتله، کله چي کوم خبریال د بوتل کتلو لپاره ور ولاړ نه سو نو ده لکه مار ته چي شپېلۍ وهې غاړه اوږده کړه او ویې ویل: زه کولای سم چي همدا اوس دا بوتل ستاسي په مخ کي مات کړم، خو دا یو مردار شی دی، هم دا ځای چټلوي او هم بد بوی کوي، بیا به یې په یو مناسب وخت او مناسب ځای کي مات کړم، که مي په یاد سول د ماتولو پر مهال تاسي هم راغواړم. له دې سره سم یې د شرابو بوتل بیرته په لاسي بکس کي کښېښود او په چټکو ګامونو د خپل موټر خوا ته روان سو. یو څو ګامه چي یې واخستل بیرته یې خبریالانو ته مخ راواړاوه او ویې ویل: کله چي د ځانمرګي په اړه زموږ پلټنې بشپړې سوې خامخا تاسي ته معلومات درکوم، بس یو ساعت وروسته دستي زنګ درته وهم.

تر دې وروسته زه خپل دفتر ته ولاړم او راپور مي چمتو کړ، غوښتل مي خپل مرکز ته یې ولېږم چي په دې وخت کي قوماندان پنچرمېن زنګ راوواهه، ما وویل بلې !

- د امنیې قوماندان خبري کوم

- قوماندان صاحب جوړ په خير

- ګوره زه او ته خو سره انډيوالان يو ، يوه ځواني به نه وکړې؟

- ولې نه، پر دواړو سترګو ، مهرباني وکړئ !

- هغه د خبري کنفرانس راپور مه خپروئ، ځکه شراب خو تاسي وليدل، پاته سو ځانمرګی، موږ چي پلټنه وکړه نو هغه ځانمرګی نه، بلکي لېونی و

- لېونی و ؟

- هو لېونی و ، يوازي لېونی نه، بلکي ګونګی هم و ، خبره داسي وه چي دا لېونی د ولايت دفتر ته ورغلی او په دروازه کي پوليسو راګرځولی و

- ښه کيسه کوه

- پوليسو چي پوښتني ځني کولې لېوني ځواب نه ورکاوه ، بس پوليسو داسي فکر کړی و چي دا به ځانمرګی وي، خو خير نور دا دغم خبري پرېږده بله خبره واوره !

- کومه خبره؟

- ما خو تاسي ته وويل چي زه هغه د شرابو بوتل په يو مناسب ځای او مناسب وخت کي ماتوم، دا دی اوس مي هغه بوتل مات کړی دی، که راځې راسه، خو ګوره بل څوک مه خبروه.

# ښاروال الوتلای هم سي

یو چا راته وویل چي زموږ ښاروال هر ماځیګر له دفتر څخه تر رخصت کېدو وروسته دوبی ته ځي او سبا سهار بېرته خپلي وظیفې ته راځي. کله چي مي دا خبره واورېده نو د کندهار کوټ بابا مي را په یاد سو. زه لا ډېر کوچنی وم چي هغه مهال د کندهار په ښار کي د کوټ بابا په نوم یو لېونحاله سړی اوسېده. ده به خیرن کالي اغوستي او لږ خبري به یې کولې. خلکو به ویل چي کوټ بابا د خدای دوست او د کندهار ولایت متصرف دی، ځکه یې نو ډېرو خلکو درناوی کاوه او دښه سري یې په سترګه یې ورته کتل. دده د کرامتونو په باب له پخوا راهیسي ډېري خبري کېدې، خو دا یوه خبره ډېره مشهوره وه چي کوټ بابا د ماښام لمونځ په کندهار او د ماخوستن لمونځ په کعبه شریفه کي کوي، خلکو به ویل چي کوټ بابا څو واره په کعبه شریفه کي لیدل سوی هم دی. کوټ بابا اوس مړ دی، خو په کندهار کي څو ځایونه دده په نوم نومول سوي دي.

زه هغه مهال ډېر کوچنی وم، په کرامت مرامت نه پوهېدم، بس یوازي به مي دنیایي نقلیه وسایل سترګو ته درېدل، لکه خر، اس، اوښ، بایسکل، موټر سایکل، موټر او الوتکه. له خپل پلاره مي اورېدلي ول چي سعودي عربستان له افغانستان څخه ښه ډېر لیري دی، ځکه به نو تل دا پوښتنه راسره وه چي کوټ بابا خو یو ملنګ سړی دی، نه الوتکه او نه هم دومره پیسې لري چي په الوتکه کي دي عربستان ته ولاړ سي، بیا نو څنګه هره شپه سعودي عربستان ته ځي او سبا سهار بیرته راځي؟ دا پوښتنه مي تر ډېره وخته پوري په زړه کي ګرځېده، حقیقت دا و چي د اولیاوو کرامو د کرامت او د هغوی د نامریي ځواک په باب مي تر اوسه کومه ژوندۍ بېلګه نه وه لیدلې، کله چي ځوان سوم نو بیا مي هم ددې سوال ځواب پیدا نه کړ، خو کله چي اوس د ښاروال صاحب له کیسې خبر سوم نو دغه پوښتنه مي حل سوه.

ربښتیا هم تاسي وګورئ ښاروال صاحب څنګه هره ورځ دوبی ته ځي او سبا سهار بېرته پر وخت خپلي وظیفې ته راځي؟ دومره معاش خو نه لري چي هره ورځ دي په الوتکه کي ولاړ سي، ځکه چي دده میاشتنی معاش او نور امتیازات دوبی ته د یوه سفر د ټکټ پیسې هم نه کېږي، نو ښکاره خبره ده چي ښاروال صاحب هم د کوټ بابا غوندي بزرګ او د خپل معنویت په وزرو هره ورځ دوبی ته ځي.

د ښاروال صاحب بل کرامت له نړیوالو معیارونو سره برابر د کابل ښار جوړول دي. که کوټ بابا هره شپه مکې مکرمې ته د عبادت لپاره ته، نو ښاروال صاحب هم خوشي هره ورځ دوبی ته نه ځي، بلکي د ملت د خدمت لپاره یې شپه پر سر کړې ده، زما په اند دی ددې لپاره هره ورځ دوبی ته ځي چي د دوبی ښار ښه په ځیر وګوري چي سړکونه، مارکیټونه، شنه ساحه او نوري برخي یې څنګه جوړي سوي دي؟ کله چي ښوک دوبی ته ولاړ نه سي، هلته خپل کور او ژوند و نه لري نو د کابل ښار به څنګه د دوبی غوندي جوړ کړي؟ دا د ښاروال صاحب ددغه ډول د سفرونو برکت

دی چي نن د کابل ښار کټ مټ د دوبی غوندي جوړ سوی دی. د ښاروال صاحب پورته دوه کرامات ښیي چي هغه یو بزرګ او د خدای دوست دی، نو ویلای سو چي پر ده د فساد تورونه مطلق بېځایه دي، که چېري خدای مه کړه پر ښاروال صاحب لګېدلي تورونه رښتیا وای، نو د افغانستان محکمې ولي خوشي کاوه؟ بیا هم که خدای مه کړه په محکمه کي کوم قاضي رشوت خوړلی وي ،نو ولسمشر صاحب ولي ویل چي ښاروال صاحب ډېر ښه سړی دی او بې ځایه ځورول سوی دی؟

ګورئ دا چي د اوسني دولت له یوه ښاروال څخه دومره لوی کراماتونه صادرېږي، خدای خبر چي رئیسان او وزیران به یې څومره لوی اولیاء کرام وي؟ وایي چي دلته یې دومره کسان مړه کړل هلته به څه حال وي !؟ بله خو لا دا چي خپله ولسمشر صاحب به څومره سپېڅلی انسان او لوی ولي وي چي دغسي سپېڅلي اشخاص یې پیدا کړي او په کار ګومارلي دي؟ د لویې څارنوالۍ دا تور بیخي بېځایه دی چي وایي، د نوي کابینې ځیني وزیران په فساد ککړ دي.

راسئ چي موږ خپله قضاوت وکړو، که چېري دغه نوي وزیران په فساد ککړ وای نو ایا هغوی ته ولسمشر صاحب په نوې کابینه کې ځای ورکاوه؟ ایا تاسي د ولسمشر صاحب په اند یوالانو کي کوم مفسد او جنایتکار شخص وینئ؟ که فرضًا له ولسمشر صاحب څخه سهواً په دولت کي کوم ناوړه شخص تېر هم سي نو له نړیوالي ټولني څخه به څنګه تېر سي؟ ځکه بهرنیان خو له افغانستان سره ډېره خواخوږي لري او نه غواړي چي افغانستان دي د مافیایي ډلو او جنایتکارانو لاس ته ولوېږي، موږ او تاسي ټولو ولیدل چي د بن په کنفرانس کي یې د افغانستان واک داسي اشخاصو ته وسپاره چي هر یو یې د تقوا له مخي تر کوټ بابا کم نه و.

یاره زه چي ورته ګورم نو ددې دولت هر غړی هغه د چا خبره د فراه کانی دی، یاني هر یو یې ولي او تر کوټ بابا کم نه دی، د کوټ بابا په نوم خو یوازي په کندهار کي یو څو ځایونه یاد سوي دي، خو د ولسمشر صاحب د ملګرو په نوم ډېر ځایونه نومول سوي دي، لکه شیرپور، وزیر اکبر خان او داسي نور، ان دا چي په بهرنیو هیوادونو کي هم ډېر ځایونه ددوی په نوم یادېږي، لکه په دوبی، امریکا، سینګاپور، فرانسه او داسي نورو هیوادونو کي.

# په ګېډه کې جګړه

د شپې مې تلویزیون چالان کړ چې یوه خبریال له ولسمشره وپوښتل: د افغانستان د اساسي قانون له تصویب څخه یو کال تېر سو خو ملي سرود لا نه دی جوړ سوی، که د اساسي قانون د هري مادې عملي کول یو کال وخت ونیسي نو اساسي قانون خو (۱۶۲) مادې لري، آیا ټول اساسي قانون به (۱۶۲) کاله وروسته عملي کېږي؟ ولسمشر ځواب ورکړ: اې وروره ! د قانون عملي کول اسانه کار نه دی، په تېره بیا د پښتو ملي سرود جوړول خو بیخي سخت کار دی، هغه د پېښوریانو خبره (ټایم به لګي او خرچه به پې راځي) ، د یوې ورځې کار خو نه دی، په دې وطن کې له د پرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

سبا سهار یوې دولتي ادارې ته ورغلم، د شعبې مامور راته وویل چې یوه هفته وروسته راسه. ما ویل دخدای لپاره زه له ډېر لري ځایه راغلی یم، ولي څه خبره ده؟ مامور صاحب یوه شیبه ټوخي شین کړی و، کله چې یې ټوخی لږ ودرېده نو خپله شوړېدلې قره قلي خولۍ یې د څټ خواته وښویوله او ویې ویل: مشکل دادی چې زما عینکي په کور کې پاته سوي دي. حیران سوم چې څه وکړم؟ مامور صاحب تر لږ ځنډ وروسته وویل: بیا هم یوه لاره سته، هغه دا چې ماته یوه جوړه عینکي رانیسه بس کار به دي وسي.

ـ ښه سمه ده درته رابه یې نیسم، د سترګو نومره مو څو ده؟

ـ ته ځان مه په تکلیف کوه، ماته یې پیسې راکړه زه یې خپله رانیسم

ـ څو افغانۍ کېږي؟

ـ زر افغانۍ کېږي، بیه یې ځکه لږ لوړه ده چې یو خو دا د نظر عینکي دي او بل نو د خلکو ډېر کارونه ور پوري تړلي دي، مثلاً اول دا ستا کار دی، که عینکي نه وي نو نه کېږي.

زه هم ناچاره سوم زر افغانۍ مې ورکړې، مامور صاحب ولاړ. پنځه دقیقې لا نه وې تېري سوي چې عینکي یې ایښې او شعبې ته راننووت. په رېږدېدلو لاسونو یې پر درخواست لاسلیک وکړ او ماته یې وویل چې ها دادی واخله، ګوره بیا و نه وایې چې ناځوانه یې، دادی کار مي در وکړ. بیا یې وویل: هی هی، زما نو یو ځواني وه چې تېره سوه، اصلاً مفلیسۍ زوړ کړم کنه نو زما خو داسي تېز نظر و لکه د شاهین، عینکو ته مي هیڅ ضرورت نه درلود. خو خیر خدای مهربانه دی که هره ورځ مي د نن په شان تېره سي نو ان شاء الله چې سترګې به مي بیرته نظر پیدا کړي، خو دا د یوې ورځې کار نه دی، ځکه چې په دې وطن کې له د پرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

کله چې کور ته راغلم نو د کوچنیانو مور راته وویل چې سږیه یوه میاشت کېږي چې ښوونځي پیل سوي دي، خو دا زموږ هلک وایي چې زموږ درسونه نه دي شروع سوي، ته یې معلومات وکړه چې دا خبره رښتیا ده که دی هسې ځان له ښوونځي څخه خلاصوي. ماهم زوی ترلاس ونیو او ښوونځي ته یې ورغلم. سرمعلم ته مې وویل چې ایا دا زما د زوی خبره رښتیا ده؟

- هو ! مکتب شروع سوی دی خو زموږ معلمین لا تر اوسه نه دي راغلي.

- نو ولې څه خبره ده؟

- ته خو خبر یې چې د معلمینو معاش ډېر لږ دی، بیا ما دوی ته وویل چې زما خو بله مرسته په وس نه ده پوره، یوازي دومره درسره کولای سم چې د حاضرۍ حساب به نه درسره کوم، تاسي کولای سئ چې ځان ته شخصي کارونه پیدا کړئ. بس دوی هم زما خبره ومنله، اوس د میاشتي په پای کي یوځل راځي حاضري امضاء کوي، خپل معاش اخلي اوځي.

- نو دا زموږ د اولادونو درسونه به څنګه سي؟

- تاسي هم څومره ناشکره خلک یاست، ومو نه لیدل چې د طالبانو په وخت کي د مکتبونو څه حال و؟ د نجونو مکتبونه خو ګرد سره تړلي ول، نن دا هم غنیمت دی چې ستاسي اولادونه له کوځو راګرځېدلي دي، لږ تر لږه په یوه تعلیمي فضا کي خو سره راټول سوي دي. نن یې صنفونه جوړ سول، سبا به یې له خیره سره کتابونه پیدا سي، بله ورځ به یې معلمین راسي او بله ورځ به یې درسونه شروع سي، یو څو کاله صبر وکړه، ټول کارونه خو په یوه ورځ نه سمېږي، په دې وطن کي له دېرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

کله چې کور ته راغلم نو غاښ مي سوکه سوکه درد شروع کړ، ما هم ځنډ و نه کړ او د غاښونو ډاکټر ته ولاړم، هغه چې مي غاښ وکوت نو په لوړ اواز یې وویل: اوهو دا خودي ټول غاښونه چینجو خوړلي دي، باید ډک سي. که رښتیا ووایم نو ډېر واخطا سوم چې په ځوانه ځوانۍ کي مي څنګه ټول غاښونه چینجو وخوړل او بل نو د هر غاښ ډکېدلو ځلور زره افغانۍ غوښتي. په خبرو خبرو کي مي ډاکټر ته وویل چې زما پلار دي خدای وبخښي د شپېتو کالو به و خو د عمر تر پایه یې نه پر یوه غاښ درد سو او نه یې هم یو غاښ ووت، دا اوس څه بلا راغله چې د خلکو غاښونه په ځوانۍ کي چینجي خوري؟ ډاکټر په خندا وویل: ولي تا ته جګړه تر بلا کمه ښکاري؟ دا ټول د جګړې له لاسه، ځکه چې په دې وطن کي له دېرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

له ډاکټره چې راتلم نو راپه یاد مي سول چې ما خو خیاط ته یوه جوړه کالي ورکړي دي، ما ویل که یې جوړ کړي ول ځني را وابه یې خلم. خیاط ته چې مي د خپلو کالیو خبره وریاده کړه نو هغه د یوه کمیس او یوه پرتوګ پرځای دوه پرتوګونه راته کښېښوول. ما ویل ماخو یو کمیس او پرتوګ غوښتی و؟

- وروره وبخښنه غلطي سوې ده.

- غلطي ولي وسي؟ تا ليدلي وي چي يو ځوک دوه پرتوګونه غواړي او بل نو د پرتاګه او کميس اندازې مو جلا جلا په کتابچه کي يادا ښت کړې.

- وروره اصلاً موږ هم ملامت نه يو ، د جګړو له لاسه مو تر اوسه هم فکر پر ځای نه دی، تاته خو معلومه ده چي په دې وطن کي له د پرشو کالو راهيسي جګړه روانه ده.

تر هغه وروسته سترې ستومانه کورته راغلم، کښېناستلی به لا نه وم چي کوچنی زوی مي په ژړا کورته راغی، سر يې مات او پر مخ يې ويني لاري لاري راروانې وې، ويل فلاني هلک په ډبره وويشتلم سر يې رامات کړ. ښځي مي راته وويل چي سړيه د دغه هلک پلار په ارامه پوه کړه، يوه ورځ يې نه ده، دغه جنګره هلک هره ورځ زموږ له هلک سره جنګ کوي.

له زوی سره د هغه هلک پلار ته ورغلم او ورته مي ويل چي وروره دا زوی خو دي لږ پوه کړه، وګوره دا زما د زوی سر يې ورمات کړی دی. د هلک پلار د دې پر ځای چي کړه غاړه وکړي او عذر وغواړي په بې پروايۍ يې وويل: وروره ما خپل زوی ډېر ښه روزلی دی، زما زوی ګرد سره له چا سره جګړه نه کوي، ستا له زوی سره به بل چا جګړه کړې وي، زه نه پوهېږم چي ته څنګه دا سي خبره کوې؟ ما ورته وويل چي وروره دا خو ښکاره خبره ده چي ستا زوی جګړه ورسره کړې ده، ټولو کوچنيانو ليدلی دی. سړي سر وښوراوه او ويې ويل: زموږ او ستا سي هم يو عجيبه وطن دی، دا سي يوه خبره به واورې چي بيخي به يې عقل نه مني، بس نو سړی څه ووايي، دا ټول د جګړې له لاسه، ځکه چي په دې وطن کي له د پرشو کالو راهيسي جګړه روانه ده.

سبا سهار په کوم کار پسي له کوره راووتم، ګورم چي زموږ يوه ګاونډې د خپل کور چټلي زموږ د کور مخ ته واچول او غلی روان سو، د شا له خوا مي ورپسي ناره کړه چي اې وروره ! دا چټلي دي ولي زموږ د کور مخ ته واچول، دا ځای د چټليو دی؟

ـ نو چيري يې واچوم؟ بل ځای نسته

ـ ولي پخوا دي چېري اچول؟

ـ پخوا خو ښاروالي فعاله وه، هره ورځ به يې وړل، او س هم که ښاروالي بيرته فعاله سوه ستا د کور مخ ته يې نه اچوم، نور څه غواړې؟

ـ ښاروالي نو څه معلومه ده چي څه مهال به فعاله سي؟

ـ دنیا په امید خوړل کېږي، ټول کارونه خو په یوه ورځ نه سمېږي، په دې وطن کي له دېرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

ماښام زما د یوه انډیوال کره مېلمه وم، تر ډوډۍ خوړلو وروسته مي په نس کي ګوړهاری شروع سو. پر نس مي لاس تېر کړ او څنګ ته ناست ملګري ته مي وویل چي زما خو پخوا ډېره ښه هاضمه وه، او س نه پوهېږم چي ولي مي په نس کي ګوړهاری جوړ سو؟ هغه راته وویل چي هګۍ او غوښه په خپلو منځو کي بد سره وړي او تا دواړه یو ځای سره وخوړل، ځکه دي په نس کي ګوړهاری پیدا سو. له ځانه سره مي وویل چي، یاره تر دې مهاله خو ټول وطن جګړې پر سر اخیستی و، اوس یې لکه چي زما نس ته هم لاره وموندله، خو خیر زما په نس کي جګړه څه د حیرانۍ خبره نه ده، ځکه چي په دې وطن کي له دېرشو کالو راهیسي جګړه روانه ده.

# شاهکار ادبي بهیر

د شاهکار ادبي بهیر اوونیزه غونډه د (۱۳۸۷) لمریز کال د وږي د میاشتي پر اوومه نېټه په شاهکار تالار کي جوړه سوه. د غونډي مېلمه پروفیسر مصطفی اکبري، مشر یې مولانا محمد علي نقشبندي او د دریځ چاري د ښاغلي نجیب کوشان پر غاړه وي. غونډه د قاري سید عبدالله مزمل له خوا د قرآن عظیم الشان د څو آیتونو په تلاوت پیل سوه. لومړی د بریالي هنریار له خوا د تېري غونډي ګزارش ولوستل سو او بیا ښاغلي عبدالرافع غیرت خپل غزل کره کتني ته وړاندي کړ چي مطلع یې په دې ډول ول:

هـــــــر ګنـــــــاه چـــــــي پـــــــه توبــــــه پـــــــه اســــــتغفار ځـــــــي
لـــــــه هغــــــه ګنـــــــاه بـــــــه څـــــــه پـــــــه زړه کــــــي ډار ځـــــــي

استاد ګل حبیب فدایي وویل چي موږ باید بهیر ته یو داسي اثر وړاندي کړو چي پر هغه علمي بحث وسي او ځوان شاعران یو څه ځني زده کړي. زما نظر دادی چي کله یو ځوک بهیر ته یو اثر راوړي نو باید اول یې دلته یو څو تنه مشران تائید کړي چي ایا دا اثر په دې ارزي چي سړی دي وخت پر ضایع کړي؟ ما چي په اصطلاح دا غزل واورېد نو دا هسي یو ساده شی دی، نه یې فورم معلوم دی او نه هنریت پکښې دی، هغه د چا خبره املا غلط، انشاء غلط، کلش سر تا پا غلط. خو کمال الدین نعیمي یې خبره رد کړه او ویې ویل چي فورم یې ښکاره خبره ده چي نظم دی. ډاکټر جبار کړاو وویل چي هره ګناه په استغفار نه ځي، مثلاً یو سړی به قتل وکړي نو ایا په توبه د دې ګناه له عذابه خلاصېدای سي؟ خو جمال سلطانزي یې خبره پرې کړه او ویې ویل چي په توبه سړی له هري ګناه پاکېدای سي. ملادوران وویل چي له لومړي بیت څخه د سیکولریزم بوی راولاړېږي.

د غزل دوهم بیت په دې ډول و:

ســــــاقي راشـــــــه ســـــــره شـــــــراب راکــــــړه ســــــري شــــــونډي
تــــــر چشـــــــمانو دي ځــــــــارېږم چـــــــي بهـــــــار ځـــــــي

معلم اکبر زړه ور وویل چي د دې بیت لومړی مصرع باید داسي جوړه سي: ساقي راشه سره شراب د شونډو راکړه. حاجي اسماعیل وویل چي ساقي، شراب او شونډي ډېر کلیشه یي او سولېدلي کلمات دي، باید نور په شعر کي رانه وړل سي، خو ملا دوران یې خبره ونیوله او ویې ویل چي دا ټول د جنت نعمتونه دي چي خدای موږ ته په دې

دنیا کي راکړي دي. د جنت نعمتونه خو ښکاره خبره ده چي هیڅکله نه کلیشه یي کېږي او نه سړی په مړېږي، که ربښتیا ووایم نو زما خو همدا اوس لاخولې اوبه ورته وکړې.

ډاکټر سلیم همدرد د دې بیت د دوهمي مصرع په باب وویل چي که د چشمانو پر ځای سترګي او د بهار پر ځای ځواني راسي نو ښه به وي، ځکه چي شراب او شونډي د کال په هر فصل کي ښه خوند کوي او که د بهار پر ځای عمر راسي مانا به یې داوي چي ساقي ژر سره شراب او سرې شونډي راوړه چي عمر مي تېرېږي.

دغزل دریم بیت په دې ډول و:

د خپـــــــــــــل زړه خبـــــــــــري واړه ویرانــــــــــــي کــــــــــا
یـــــــــار هغــــــــه چـــــــي همېشـــــــه پــــــــه زړه د یــــــار ځـــــــي

استاد لعل محمد وویل چي د دې بیت لومړی او دوهمه مصرع تر خپل منځ هیڅ تړاو نه سره لري. استاد کمال الدین نعیمي بیا د څلورم بیت په باب وویل چي د دې بیت منطق ضعیفه دي، ځکه کېدای سي چي د یار خبري هم د ویرانی سبب سي، زه خو خپله د یار له لاسه تباه تباه یم، کله راته وایي چي کریډیټ کارډ راواستوه او کله بیا وایي چي زه له وروره ډارېږم اوس دي نه سم لیدای، په اخرت کي به له خیره سره ګورو. که د شاعر هدف داوي چي نجلۍ دي همېشه د یار په خوله وکړي بیا دا خبره سمه ده خو ډاکټر سلیم همدرد بیا د کمال الدین نعیمي خبره رد کړه او ویې ویل چي د شعر پیغام باید د هلکانو او نجونو دواړو لپاره وي، موږ باید د جنډر موضوع هم له پامه و نه غورځوو.

دغزل څلورم بیت په دې ډول و:

جهــــــــــان ځـــــــــای د خوښـــــــــی نــــــــــه دی دنــــــــــاورین دی
چـــــــــي توتــــــــــا لــــــــــه ګلســـــــــتانه پـــــــــه چغــــــــار ځـــــــــي

معلم اکبر وویل چي دا خبره سمه نه ده چي دنیا د خوښی ځای نه دی، دا زموږ انډیوال څلور ودونه کړي دي، دوه کورونه او سراچه موټر هم لري. تردې لا بله خوښي وي؟ حاجي اسمعیل وویل چي شاعر څه خبر دی چي توتا له ګلستانه په چغار ځي، ښایي توتا خوشاله وي. معلم اکبر وویل چي توتا یې باید توتي لیکلی وای. ملا دوران وویل چي دا بیت د شاعر خپل تخلیق او فکر نه دی، بلکي دا حدیث یې ترجمه او په نظم اړولی چي وایي: دا دنیا د مسلمان لپاره دوزخ او د کافر لپاره جنت دی.

دغزل پنځم بیت په دې ډول و :

پــــــه وار وار چـــــــي پـــــــه دنیـــــــا بانـــــــدي راغلـــــــي
عاقبـــــــــت بـــــــــه ځنـــــــــي واړه پـــــــــه وار وار ځـــــــــي

ملادوران وويل چي دابيت هم د دې ايت شريف ترجمه ده چي وايي: هر ژوندى شى به د مرګ خوند وڅکي. ډاکټر سليم همدرد وويل چي ټول خلک دنيا ته په وار وار نه دي راغلي، ځيني ماشومان غبرګوليان او ان کله نا کله خو يوه مور اووه ماشومان هم په يوه وار زېږوي. استاد لعل محمد وويل چي دلته معلومه نه ده چي د شاعر څوک مطلب دى، دنيا ته خو حيوانات او نور ژوندي موجودات هم راځي. که هدف يې پېريان او حيوانات وي نو دا خو چندان د خواشينۍ خبره نه ده.

د غزل شپږم بیت په دې ډول و :

کـــــــه لـــــــه درده مـــــــي خبـــــــر نـــــــه دي وګـــــــړي
چـــــــي مـــــــي ســـــــرې وینـــــــي ترســـــــترګو په رخســـــــارځي

حاجي اسماعيل وويل چي د دې بيت لومړى مصرع بايد دا سي وويل سي: ولي خلک زما له حاله نه خبرېږي. استاد عطاء وويل چي پنځم او شپږم بيتونه سرې ناهيلى کوي، شاعر بايد ژوند ته هيله من وي او که وو ايو چي هنر د ژوند لپاره دى نو بايد په شعر کي د خلکو لپاره د اميد او هيلي پيغام نغښتى وي. ما چي دا بيتونه واورېدل نو د انا مرګ مي را په ياد سو. بريالي هنريار وويل چي د انا مرګ دومره ناهيلي نه ده، ځکه په پښتو ژبه کي يو متل دى چي وايي: په غمو کي د انا غم اسانه دى.

دغزل اووم بیت په دې ډول و :

د هغـــــــــه طبیـــــــــب نـــــــــوم ځـــــــــه اخلـــــــــې پـــــــــه ژبـــــــــه
چـــــــــي بیمـــــــــار ورلـــــــــره راشـــــــــي او بیمـــــــــار ځـــــــــي

ډاکټر سليم همدرد وويل چي په دې بيت کي د ډاکټرانو غيبت سوى دى، کېداى سي چي يو ناروغ د يو ډاکټر په دوا جوړ نه سي او کېداى سي بل ناروغ بيا د همدغه ډاکټر په دوا جوړ سي. ملا دوران يې هم خبره تائيد کړه او ويې ويل چي جوړه په خداى پوري اړه لري، هيڅ يو ډاکټر د يو ناروغ د علاج تضمين نه سي کولاى.

دغزل اتم بيت په دې ډول و:

کـــــــه مــــــــي پېژنـــــــــې هغـــــــــه لېـــــــــونی زه يــــــــم
چــــــــي نـــــــــادان را لـــــــــره راشـــــــــي او هوښــــــيار ځـــــــــي

ډاکټر سليم همدرد وويل چې په اوسني عصر کې طبيب او ډاکټر سره جلا دی، که د شاعر هدف يوناني طبيب وي نو هغه خو نه سم علاج کولای سي او نه اوس چندان خلک ورځي او که هدف يې ډاکټر وي نو بايد ډاکټر وويل سي. بله خبره دا ده چې که يو ډاکټر خپله لېونی وي، نو د بل لېوني علاج به څنګه وکړي؟

حاجي اسماعيل بيا وويل چې د لېوني کلمه دي په لېوه واړول سي، ياني داسي دي وويل سي: که مي پېژنې هغه لېوه زه يم، د ډاکټر همدرد صاحب مخ ته دي لاس وي، ځيني ډاکټران هم تر لېوانو کم نه دي، کله چي له يو ناروغ څخه ډېر فيس واخلي نو د ناروغ سد پخپله سر ته راسي. ډاکټر جبار کړاو وويل چي که په دې بيت کي د لېوني کلمه په لېوه واوړي نو وزن يې خرابېږي. کمال الدين نعيمي بيا وويل چي په دې بيت کي ډېري باتې راغلي دي، ياني زه يو داسي ډاکټر يم چي که څه هم خپله لېونی يم خو لېوني پر سد کولای سم، دا که روغ ډاکټر وای نو څومره د نامي زوی به وای.

دغزل نهم بيت په دې ډول و:

دروغجــــــــــن بـــــــــه همېشـــــــــه وي پـــــــــه خـــــــــزان کـــــــــي
د رښـــــــــتينو پـــــــــه مـــــــــخ هـــــــــر کلـــــــــه بهـــــــــار ځـــــــــي

بريالي هنريار د نهم بيت په باب وويل چي دا بيت له واقعيت څخه ليري دی، نن د دنيا ټول کار وبار پر درواغو ولاړ دی، درواغجن خلک ډېر شتمن دي او موږ چي رښتيا وايو سپېرې شونډې ګرځو او هر هغه څوک چي رښتيا وايي نو د خولې سر يې سوری دی، همدا اوس په دې غزل کي دومره غلطۍ سته چي که زه رښتيا ووايم، ياني هغه ټولي غلطۍ په ګوته کړم نو غيرت صاحب به راڅخه خفه سي او په ژوند کي به يوه خبره هم راسره و نه کړي. اول خو يې د دې غزل ځمکه زما څخه غلا کړې ده، هغه زما يو غزل دی چي وايي: هه هه هه... ته و دربېږه اوس راڅخه هېر سو، خو په هر صورت ځمکه يې دغسي ده. بل دا چي ټولي قافيې يې غلطي دي، د فکر او پيغام په لحاظ هم يو کمزوری غزل و، نور نو يوه لمن ګرامري غلطۍ يې درلودې، اوس ناوخته دی که زه دا ټولي خبري دلته کوم نو مشاعرې ته وخت نه پاته کېږي، زه به دغه ياداښتونه غيرت صاحب ته ورکړم چي په درد يې وخوري.

شېر جان کاکا بیا وویل چي غیرت صاحب یو ځوان استعداد دی، خیر که نن یې کمزوری غزل ولیکه سبا به ښه او په تول پوره غزل ولیکي. تر هغه وروسته د غونډې مشر مېلمه ته بلنه ورکړل سوه چي د غونډې په باب خپل نظر وړاندي کړي. د غونډې مشر وویل، ښایي تاسي هیڅ باور و نه کړئ چي ما تر اوسه د غسي علمي او له شخصي عقدو پاکه کره کتنه نه وه لیدلې، زه ویاړم چي مونږ نن په ځوان کهول کي د ښو شاعرانو او لیکوالو تر څنګ ښه نقادان او کره کتونکي هم لرو. ما د ښاغلي غیرت صاحب نثري لیکني لوستي وې، ډېري هنري او ښې لیکني کوي، خو تر اوسه مي یې شعرونه نه وه اورېدلي، زه نه پوهېږم چي د غیرت صاحب ولي په زړه کي ورتېر سوه چي باید شعر هم ولیکي. زما په فکر هماغه نثر یې بس و، بیا هم که دی غواړي شعر ولیکي نو لومړی دي ادبي فنون او وروسته دي کلاسیک شعر مطالعه کړي، په تېره بیا خوشال بابا خو باید ډېر په دقت مطالعه کړي، له دې غزل څخه خو یې داسي ښکاري چي د خوشال بابا نوم یې ګردسره نه دی اورېدلی. زه نه پوهېږم هغه څوک چي خوشال بابا یې نه وي مطالعه کړی څنګه دا جرئت کوي چي شعر ولیکي.

وروسته خپله له ښاغلي غیرت صاحب څخه وغوښتل سوه چي د کره کتونکو په باب خپل نظر څرګند کړي. ښاغلي غیرت صاحب وویل چي زه ټولو هغو دوستانو ته د زړه له کومي کورودانی وایم چي زه یې خپلو غلطیو ته متوجه کړم. یوه غلطي چي همدا اوس زما ورته پام سو، هغه داده چي د خپل غزل پر ځای مي د خوشال بابا غزل کره کتني ته وړاندي کړی دی.

# سپي څنګه تاریخي اثر غلا کړ؟

یوه ورځ مي د خپل محصل زوی لیکچر نوټونه ولیدل، ګورم چي کټ مټ هغه زمونږ د وختونو لیکچر نوټونه دي. په دې منځ کي پنځوس کاله تېر سوي ول خو په دې دومره وخت کي یې لږ تو پیر کړی و. زمونږ په وخت کي هغه استادان چي د غه لیکچر نوټونه یې ترتیب کړي ول ځیني یې ژوندي ول، که کوم ځای به ګونګ و، نو له هماغه استاده به مو پوښتنه وکړه خو اوس هغه ټول استادان خدای دي یې وبخښي وفات سوي ول. بل تو پیر یې داو چي هغه وخت د دې لیکچر نوټونو د کاغذ کیفیت یو څه ښه و، فوټوکاپي به یې هم یو څه روښانه وه، خو اوس یې فوټوکاپي هم داسي وه، لکه تر میلاد د مخه د کوم ډبرلیک عکس چي دي اخیستی وي. کاپي یې لا څه کوې اصل یې هم داسي و، تا چي ویل د غوا پر څرمن لیکل سوی دی.

له دې سره سم د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت هغه اعلان را یاد سو چي ویل یې، تاریخي اثار که له هر چا سره وي مونږ یې په لوړه بیه څني رانیسو. نور یې څه کوې له خوشالیه باغ باغ سوم، ما ویل یاره شېرجانه که دا لیکچرنوټونه په لاس درغلل نو بس خولۍ دي په غوړو کي سوه.

بس هغه دم روان سوم او ځان مي کابل پوهنتون ته ورساوه. د پوهنتون رئیس ته چي مي د لیکچر نوټونو خبره ور یاده کړه نو اسمان ته یې ټوپ کړه، ویل ته لېونی سوی یې، لیکچر نوټونه څنګه درکړو؟ نه وینې چي مونږ یې همدا اوس تدریسوو؟ ما ویل، زه پوهېږم، خو زه به یې کمپیوټري درته ولیکم چي هم اسانه ولوستل سي او هم که یو وخت مو چاپول نو د کمپوز کار به یې سوی وي. د رئیس صاحب وروځي راوځړېدې، یوه شیبه یې زنه په مټ کي ونیول او بیا یې وویل:

ښه سمه ده، یوه فوټو کاپي به یې درکړو

ـ نه فوټو کاپي یې نه غواړمه، که اصل یې راکړئ ښه به وي.

ـ اصل یې څه کوې؟ هغه خو مونږ تدریسوو.

ـ ځکه زه چي هر وخت دا لیکچر نوټونه وینم نو د خپلي محصلۍ وختونه رایادېږي او بل دا چي دا زما د خدای بخښلو استادانو د لاسو نښې هم دي.

ـ نو که درڅخه ورک سول زمونږ خو به کور پر چرګه رابار کړې، بیا د چا په وسه پوره ده چي نوي لیکچر نوټونه ولیکي؟

ـ صاحب تاسي بېغمه اوسئ، نه را څخه ورکېږي.

د رئیس په تندي کي ناڅاپه ګونځي پیدا سوې، له ځوکۍ څخه را جګ سو او په درد یې وویل: ځه ورک سه! ولي یوازي پر تا خپل استادان ګران دي؟ موږ هم غواړو چي د خپلو استادانو د لاس نښانۍ او یادګارونه ولرو؟ زړه مي له ګرومه ډک سو او له پوهنتون څخه ناهیلی کور ته راروان سوم. کور ته لا نه وم رسېدلی چي یوې رېړۍ (کراچۍ) ته مي پام سو. په رېړۍ کي یو چرګ چي بېچاره له رنګه تک تور اوښتی و، په یوه پښه راځړېده او لاندي د ښوروا یوه لویه کاسه ورته پرته وه. رېړۍ والا به د کاسې له ښوروا څخه یو ګیلاس ډک کړ او پر چرګ به یې توی کړ. که څه هم چرګ له مودو مودو راهیسي همداسي په یوه پښه راځړېده، خو کله به چي د پاسه نوې ښوروا پر توی سول نو داسي تونښ (بخار) به یې پورته سو تا چي ویل دا او س تازه یې له دېګ څخه را وایست. رېړۍ والا چي به هر وار پر چرګ ښوروا توی کړه نو نارې به یې کړې: (د چرګ تازه ښوروا، ګیلاس په پنځه افغانۍ، وڅښئ دا تازه ښوروا! وا وا قسمت خوره به یې خوري).

له خپل مرحوم پلاره مي اورېدلي ول چي کله موږ کوچنیان و او مکتب ته تلو، نو دغه رېړۍ والا به پر دغه ځای یخني خرڅول. چرګ نو خدای دي مي غاړي نه بندوي چي هغه پخوانی او که به بل چرګ وي. د دې چرګ په لیدو مي زموږ د کوڅې یو پوډري لعل ګل را په یاد سو. هغه چي به کله په کوڅه کي یو تازه مردار سوی چرګ پیدا کړ، نو پاک به یې کړ او بیا به یې پر یخني والا خرڅاوه. یو وخت یو چا ورته وویل چي بدبخته په خلکو مردار چرګان خورې؟ ده په خندا ورته وویل: (عجیبه ده، یو چرګ چي د انسان په لاس مړ سي، هغه حلال دی او بل چرګ چي خدای پاک په خپله وژلی وي، هغه مردار دی. زه خو وایم چي تر دې بل حلال چرګ نسته). ما ویل خدای خبر چي دا به څنګه چرګ وي. خو په هر حال دا چرګ اوس د افغانستان په تاریخي اثارو کي ګڼل کېده. ما ویل که نور اثار په لاس نه درځي، و نیسه دا چرګ خو رانیولای سې.

رېړۍ والا ته چي مي د چرګ وویل نو هغه نټه (انکار) وکړ، ویل موږ یوازي د چرګ ښوروا خرڅوو، ولاړ سه بل ځای چرګ رانیسه. لکه زما په مطلب چي پوهېدلی وي، ویل ځه وروره چرګ بیخي نه خرڅوم. ما اورېدلي ول چي تاریخي اثار زرګونه ډالره بیه لري، بس څو زرونه مي یو کړل او له رېړۍ والا څخه مي چرګ د غوايي په بیه رانیو، په یوه پلاستیکي کڅوړه کي مي واچاوه او د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت خوا ته روان سوم. پر لاري ډېر تږی سوم، یوه دکان ته ودرېدم، کڅوړه مي څنګ ته کېښېښوده او دکاندار ته مي وویل چي یو بوتل اوبه راکړه. په دې وخت کي ګورم چي یو کوڅه ډب سپی راغی او چرګ یې له کڅوړي سره یووړ. په سپي پسي چي مي هرڅومره منډي وکړې په لاس رانه غی.

# تشنابونه او د ښوروا بویونه

زموږ شعبه د تشناب خنګ ته وه، هر همکار چې به تشناب ته ورتېرېده، نو یو وار به یې موږ ته د سترګو تر کونجو وکتل، کله چې به مو ورته پام نه و، نو غلی به ننووت او که به مو ورته پام سو، نو سلام به یې راواچاوه. کله چې به د تشناب دروازه بنده وه، نو شعبې ته به راغی او زموږ سره به یې ځان په خبرو بوخت کړ. کله چې به یې د تشناب د دروازې کړپ واورېد، نو سمدلاسه به ولاړ سو او موږ ته به یې وویل: ښه نور مو وخت نه نیسم، بس یوازې ستاسي احترام ته راغلم.

لومړی موږ ته ددغو همکارانو خبري ستړي کوونکي وې او هسې به مو سر ورسره ښوراوه خو ځینو همکارانو به داسي په زړه پوري کیسې کولې چې سوکه سوکه موږ هم ورسره عادت سولو، تر دې وروسته به موږ خپله د تشناب خواته سترګې نیولې وې چې که کوم څوک ووینو چې بانډار ورسره وکړو. کله چې به مو سهار له کوم همکار سره ستړې مسې نه وه کړې نو پر همدغه وخت به مو راونیو او په غبږ کي به مو داسي کلک ونیو، لکه په کلونو کلونو چې مو نه وي سره لیدلي.

کله چې به یوه همکار نوي کالي اغوستي ول، نو موږ ته به یوه نوې موضوع وه، هغه بېچاره که به څه هم پښې سره منښلې او پرنس به یې لاس تېراوه خو ناچاره و چې موږ ته دخپلو نویو کالیو په باب پوره معلومات راکړي. د ورځې مو اته ساعته کار کاوه چې څلور ساعته به یې د تشناب له لارویانو سره په ستړې مسې کي تېرېدل. تشناب یوه کړکۍ هم درلوده چې یوه کورته ورخلاصه وه.

یوه ورځ د نوموړي کور خاوند راغی ویل، ستاسي د تشناب بد بویي موږ ډېر تنګ کړي یو. د شعبې چپړاسي رمضان اکا مي راوغوښت او ورته مي ویل چې دا تشناب ولې داسي بد بوی کوي، نه یې مینځې که څنګه؟ هغه وویل چې قسم په خدای هر سهار یې مینځم، خو خیر تر دې وروسته به یې په ورځ کي دوه ځله مینځم. تر دې وروسته رښتیا هم د تشناب بد بویي یو مخ ورکه سوه.

یوه ورځ مي د ښوروا بوی تر سږمو سو، ښه چې ځیر سوم نو بوی له تشناب څخه راته، کله چې ورغلم نو ګورم چې په تشناب کي غوړ لوښي پراته دي. رمضان اکا ته مي وویل چې دا غوړ لوښي دلته د څه لپاره پراته دي؟ هغه وویل چې په اشپزخانه کي اوبه نه وې، ما ویل غوړ لوښي به دلته پرېمینځم، ښایي دغوړو لوښو بوی به وي.

بله ورځ زموږ یوه همکار راته وویل چې له تشناب څخه د اچارو بوی راځي، کله چې ورغلم نو د اچارو یو مرتبان مي پیدا کړ چې سر یې خلاص و. ما ویل له یو چا څخه به پاته سوی وي. بله ورځ غرمه چې تشناب ته ورغلم نو د پېږکیو بوی مي تر سږمو سو، رمضان اکا ته مي وویل چې دا څه کیسه ده؟ هغه وویل چې د ګاونډیانو کره پېږکي پخېږي او

تر کړکۍ یې بوی زموږ تشناب ته راځي.

تر دې وروسته به هره ورځ له تشناب څخه د ډول ډول خوړو او مېوو بوی راته، چې ورسره د تشناب د مراجعینو شمېر هم ډېرېده. اوس نو تشناب داسې یو ځای و چې کله به ورغلې او دا بویونه به دربانديې ولګېدل نو داسې فکر دې نه کاوه چې دادې تشناب وې، تاچې ویل د کابل د (ښار نو ) د کبابیانو په کوڅه کې یم، دسرې هیڅ زړه نه غوښت چې بیرته دې ځنې راووزې. یوازې دغه یو تشناب نه و چې د ښوروا بویونه ځنې پورته کېدل، بلکې د دفتر د ټولو تشنابونو دغه حال و.

یوه ورځ مې د تشناب له دننه څخه د څو نفرو خبرې واورېدلې، حیران سوم چې دا څه خبره ده؟ تر دې مخکې مې ښځې لیدلې وې چې په ډله ییز ډول تشناب ته ورځې او ان دا چې هلته کیسې هم کوي خو په ډله ییز ډول د نارینه وو ورتګ راته نوې خبره وه. تشناب ته نژدې یو ځای ورته پټ سوم چې دا ښاغلي مراجعین وپېژنم. کله چې د تشناب دروازه خلاصه سوه نو ګورم چې څلور نفره شېربرېتي ځوانان راووتل، په خندا مې ورته وویل چې یارانو خیریت و؟ دوی ویل نن تشناب ته اوبه نه راتلې موږ ویل و به یې ګورو چې څه علت لري؟ زه چې تشناب ته ورغلم نو ګورم چې د تشناب پایپونه بیخي جوړ دي.

وایې چې د مسکین بخت یو ګړی وي، زموږ دغه ښې ورځې هم اوږدې نه سوې، یوه میاشت وروسته بیا تشناب هغسې بد بوی کاوه، رمضان اکا مې راوغوښت، ورتهومې ویل چې دا تشناب بیا ولې داسې بدبوی کوي، لکه چې سم یې نه مینځې که څنګه؟

ــ نه قسم په خدای چې د ورځې یې دوه واره مینځم.

ــ نو دا یوه میاشت خو دې هم هره ورځ دوه ځله پرېمنځه، هغه مهال یې ولې داسې بد بوی نه کاوه؟

ــ صاحب هغه وخت خو دورځې څو واره پرېمنځل کېده. دوه ځله به ما پرېمنځه او شپږ اووه ځله به نورو همکارانو پرېمنځه.

ــ نو دا همکاران چې پر تا دومره زړه سوی لري اوس یې ولې نه مینځې؟

ــ صاحب هغه خو ټول د روژې برکت و، اوس خو روژه تېره سوه، هغوی اوس په تشناب کې ډوډۍ نه خوري، بلکې د ډوډۍ خونې ته ځي.

# نازوکړی شاعر

په یوه راډیو کي د ادبي خپروني پروډیوسر وم. یوه ورځ زموږ ایډېټر راغی او یوه نوې چاپ سوې شعري مجموعه یې راکړه، ویل د دې کتاب په باب په خپرونه کي یو ګردی مېز جوړ کړه، ځوان شاعر دی ښه دی تشویق به سي.

ما چي د کتاب پر پښتی د شاعر ژوندلیک ولوست نو عمر یې (۲۰) کاله و، دا چي په اصطلاح ځوان شاعر د ایډېټر شخصي انډیوال و، نو زه هم مجبوره وم چي هغه په خپرونه کي د ځوان شاعر په نوم معرفي کړم. تر خپروني وروسته څو نفرو ټلیفونونه راته وکړل، ویل دا خو زوړ سړی دی او تاسي د ځوان شاعر په نوم معرفي کړ، ما ورته وویل چي یو خو یې شعرونه د ځوانۍ د زمانې دي او بل نو دا سي باغي او مسته شاعري یې کړې ده چي ځوانان یې په ځپلۍ پسي هم نه سي رسېدای.

د بلي اوونۍ د خپروني لپاره زموږ ایډېټر یوه بله شعري مجموعه راوړل، ویل دا کتاب په خپرونه کي معرفي کړه، ځوان شاعر دی دا یې لومړۍ شعري مجموعه ده، ښه دی و به هڅول سي. د کتاب پر پښتۍ چي مي د شاعر ژوندلیک ته وکتل نو عمر یې اتلس کاله و. حیران سوم چي (۲۰) کلن شاعر خو مي په ځوان معرفي کړ اوس دا شاعر په کوم نوم معرفي کړم؟ تر ډېر چورت وهلو وروسته مي په زړه کي راوګرځېده چي دې شاعر ته نازوکړی شاعر ووایم.

# د پوهاند صاحب غابښ ځنګه ووت؟

بلې !

ـ پوهاند صاحب زه فرید خبري کوم، هلئ ژر له کوره راووزئ چي زلزله کېږي

ـڅه شی زلزله کېږي ! چاویل؟

ـ ایساف اعلان کړی دی، ژر راووزئ چي وخت ډېر کم دی.

پوهاند صاحب د موبایل له بندولو سره سم خپلي مېرمني فاطمې ته چي د ده څنګ ته ناسته وه او کالي یې اوتو کول وویل: هله فاطمه جاني درمنډه کړه چي زلزله کېږي ! له دې سره سم پوهاند صاحب دوې پښې دغه، دوې یې نوري پور کړې او د کور پر دروازه یې ور منډه کړه، کله چي د الېز ته راووت نو چیغه یې کړه: هلئ زلزله کېږي ! له دې سره سم یې په زینو کي منډه کړه خو دوې درې زینې لا نه و کښېنته سوی چي نوک یې وواهه او مخ پر کښېنته پرمخي ولوېد، چي د مخ یو غابښ یې ووت، خو د زلزلې له ډاره یې د غابښ وتلو ته پام نه سو او ډېر ژر بېرته راپورته سو او په منډه په زینو کي کښېنته سو. کله چي له بلاک څخه یو شل ګامه لیري سو نو په لوړ اواز یې ناري کړې: فاطمه جاني څه سوې؟ هله ژر راووزه ! اې خلکو ژر راووزئ چي زلزله کېږي ! په دې وخت کي فاطمه هم په منډه راوره سېده، ورپسې نور ګاونډیان هم راکښېنته سول. په لږ وخت کي د بلاک ټول خلک دباندي راووتل، چا بړستنه پر سر را اخیستې، چا یو بکس او چا بیا صندلي را اخیستې وه، د وارخطایۍ کارو، د چا چي هر شی لاس ته ورغلی و بس هغه یې را اخیستی و. هوا ډېره سړه وه او پر ځمکه یوه لوېشت واوره پرته وه. د تلواري کارو، پوهاند صاحب د فاطمې توره لمن چي تازه یې اوتو کړې ول پر سر ټینګه تړلې وه.

پنځه دقیقې لا نه وې تېري سوي چي د شاوخوا بلاکونو خلک هم راکښېنته سول. داسي غالمغال جوړ سو لکه د مینا بچي چي له ځالي را اخلې. یوه بوډۍ ښځه چي سا یې لنډه لنډه کېده، له یوه درانده بکس سره راورسېده، پر زړه یې لاس نیولی او یوې بلي ښځي ته یې وویل: وی، خوري که زلزله وسوه زما خوبه زاره وچوي، دا اوس مي هم د زړه درزا په خپلو غوږو اورم. یوه بله بوډۍ ښځه چي له یخنۍ څخه یې لا سونه لړزېدله د موبایل نومره ووهله:

بلې !

ـ ملالۍ لوري هله ژر له کوره راووزه چي زلزله کېږي.

ـ څه شی زلزله کېږي ! چا ویل؟

ـ نه یمه خبره خو زموږ د بلاکونو ټول خلک راوتلي دي

ـ موري دا به درواغ وي

ـ درواغ به څنګه وي، زموږ د بلاکونو ټول خلک راوتلي دي، نور یې څه کوې چې پوهاند صاحب هم راوتلی دی، پوهاند صاحب خو به نه تېروزي

ـ زلزله څه مهال کېږي؟

ـ بس نن شپه کېږي، ډېري پوښتني مه کوه ژر راووزه !

یو سړی چې مدیر اسلم خان نومېده او یخنۍ ربړداوه، پوهاند صاحب ته ورنژدې سو او ویې ویل:

پوهاند صاحب تاسي خو ډېر معلومات لرئ او تل خبرونه هم اورئ، دا چا ویل چې نن شپه زلزله کېږي؟

ـ ایساف اعلان کړی دی.

ـ ښه ښه ایساف اعلان کړی دی، نو زموږ دولت خو تر اوسه په دې باب هیڅ هم نه دي ویلي

ـ زموږ دولت بېچاره د فیل په غوږ کي ویده دی، خو زه د ایساف تر اعلان پنځه دقیقې وروسته دستي خبر سوم، زه فکر کوم چې دولت به تر اوسه هم نه وي خبر.

ـ نو ایساف څنګه خبرېږي چې نن شپه زلزله کېږي؟

ـ ایساف خو پر مختللې ټیکنالوژي لري، بیا نو په ایساف کي هغه هېوادونه هم شامل دي چې هلته ډېري زلزلې کېږي، لکه ترکیه، امریکا او... هغوی په دې باب ډېري ښې تجربې او پرمختللي وسایل لري.

ـ نو د دغو هیوادونو حکومتونه چې د زلزلې په باب دومره پرمخ تللي وسایل لري، ولي تر زلزلې د مخه نه خبرېږي چې خلک خبر سي او د تلفاتو مخه ونیول سي؟

ـ دا حکومتونه تر زلزلې دمخه خبرېږي او اعلانونه هم کوي خو ټول خلک یې نه ورسره مني، لکه زموږ خلک چې وایي په دې نو ایساف څه خبر دی.

یو سړی چې زلمی نومېده او یو کوچنی یې په غېږکي نیولی او خپله کورتۍ یې پر غوړولې وه، وویل: خدای دي فضل وکړي، دا به څه کوو؟ ته دې خلکو ته وګوره له اکثرو سره یې نه بړستنه سته او نه کمپله، یوازي په هاخپلو دریشیو کي راوتلي دي، که په دې سړه هوا کي تر سهاره پاته سو نو یخني به مو مړه کړي، موږ خو لاخیر دا

کوچنیان به څه په کوو؟ یو سړی چې خندا ورتله او پرخوله یې لاس نیولی و، زلمي ته ورنژدې سو او په غوږ کې یې ورته وویل: مدیر صاحب بخښنه غواړم، بده خبره هم ده چې درته وایم، دا پطلون دې ماته داسې ښکاري لکه چېه چې دې اغوستی وي.

هیچا زړه نه سوای کولای چې کورته ولاړ سي، کله چې به چا له ځایه حرکت کاوه نو داسې به په تکلیف و تا چې ویل په ختو کې خښژي. فاطمې پوهاند صاحب ته وویل چې زه به په منډه یو ځل کورته ولاړه سم، پیسې او خپل زر به راواخلم. پوهاند صاحب یې غوږ ته خوله ورنژدې کړه او په ناز یې ورته وویل: ګراني ماته ستا ژوند زموږ تر ټولې شتمنۍ مهم دی، ماته نه ګورې چې خپل د ډوکټورا برې لیک، مډالونه، کتابونه او لیکچرنوټونه مې ټوله پرېښوول او یوازې مې خپل سر را وایست، خو ته په پیسو پسې ځان په لوی لاس د بلا په خوله کې ورکوې؟ موږ خو لږ پیسې نه لرو چې ته داسې وارخطا یې، خو فاطمې پر خپله خبره ټینګار کاوه، ویل خیر دی ژر بیرته راځم. فاطمه چې کورته روانه سوه نو پوهاند صاحب هم د شا له خوا په نیولو ګامونو ورپسې روان سو خو بهه یې داسې الوتې وه تا چې ویل ځانمرګی برید کوي. کله چې به یې څلور پنځه ګامه واخیستل نو و به ودرېد، فاطمې ته به یې مخ راواړاوه، ویل ګراني ته ودرېږه لکه چې زلزله شروع سوه. کله چې کورته ورسېدل نو لومړی سالون ته ورننوتل، ګوري تلویزیون لا هماغسې چالان دی. دوی چې تلوېزیون ته وکتل نو په دې وخت کې د تلوېزیون له لارې دا اعلان خپور سو: هغه کابل ښاریان چې د زلزلې له ډاره یې خپل کورونه پرې ایښي، بیرته دې خپلو کورونو ته راستانه سي، ځکه دغه اوازه په بشپړ ډول ناسمه او د یوې ډلې حرفوي غلو دسیسه ده. د دې دسیسې په نتیجه کې غلو څو کورونه لوټ کړي، خو له نېکه مرغه چې پولیس په دغه دسیسه خبر او د دې ډلې دوه تنه غله یې نیولي دي. دې غلو اقرار کړی چې دا کار یې د دې لپاره کړی چې خلک خپل کورونه پرېږدي او دوی په اسانۍ سره د خلکو کورونه لوټ کړي.

د دې اعلان په اورېدو سره فاطمې په وارخطایۍ د الماری خواته ورمنډه کړه، ګوري چې د الماری دروازه خلاصه ده، په الماری کې چې یې وکتل نو یوه لویه چیغه یې تر خوله ووته: هله پوهاند صاحب راسه چې خاوري مې پر سر سوې! غلو ټولې پیسې او زر وړي دي.

# بیا به بله ورځ درته ووایم

زموږ د دفتر په ټولو ښځینه همکارانو کي مژګان په خپلو وېښتانو ډېره نازېده. دا نوره هم ښکلې وه او هغه د چا خبره سترګه په ډکېده خو د هغې اوږدو او ژیړو وېښتانو ډېر ژر د سړي پام ځان ته ور اړاوه. دې به نه یوازي دا چي د خپلو همزولو په مخکي خپل وېښتان یوې او بلې خوا ته ځنډل، بلکي کله نا کله به د نارینه وو په مخکي هم په داسي ناز و نخرو تېرېده چي غوړېدلي وېښتان به یې تر پوړني راوتلي او تر زنګنو به تېر ول.

کله چي به د وېښتانو خبره کېده، نو د دې نوم به یې په سر کي یادېده. ددفتر هري ښځي چي به غوښتل د مژګان وېښتان له نژدې ووینې نو هغې به بخیلي کوله او اجازه به یې نه ورکوله چي د هغې وېښتان دي له نژدې وګوري، ان دا چي د خپلو وېښتانو د پالني او ساتني په باب به یې هم چاته معلومات نه ورکول. کله چي به له هغې څخه چا د وېښتانو په باره کي پوښتنه وکړه نو دې به کله ویل چي زما مور او ټولي خویندي دغسي ښه وېښتان لري او کله به یې ویل چي بیا به بله ورځ درته ووایم. زموږ د دفتر ټولو ښځو غوښتل چي د مژګان وېښتان له نژدې ووینې او په دې راز پوه سي چي د هغې وېښتان ولي دومره ښکلي او اوږده دي؟

یوه ورځ مژګان دفتر ته ناوخته راغله. سر یې په پوړني کلک تړلی او بڼه یې هم الوتې وه. له دې سره سم زموږ د دفتر ښځي پر راټولي سوې، ویل خدای دي یې خیر کړي څه پېښه ده؟ مژګان ویل هیڅ هم نه ده پېښه، یوازي مي سر لږ درد کوي. په دې وخت کي زموږ د سهارنۍ غونډې وخت راغی او موږ ټول د غونډې تالار ته ولاړو. غونډه لا نه وه پیل سوې چي زموږ د دفتر چپړاسي ګل خان لالا یو مصنوعي چوټي راوړ، ویل دا دچا دی؟ ما چي نن سهار د دفتر دالېزونه جارو کول پیدا مي کړ. په دې وخت کي موږ ټولو یو وار د مژګان وېښتانو او بیا د ګل خان لالا په لاس کي چوټي ته وکتل.

په زړه کي مي راوګرځېده چي یاره ژوند هم په سړي عجیبه کانې کوي، هغه چوټي چي تر پرونه پوري یې ډېرو نجونو او هلکانو د نژدې لیدلو ارمان درلود، نن د ګل خان لالا په لاس کي دی.

# اوس اصلي خبري ته راځم

د دوبي په تکنده غرمه کې مې درنه غوټه په شا او د کور خواته روان وم. کور ته نژدې زموږ يو کليوال، سالو اکا رابانډې پېښ سو. زما په ليدو يې رامنډه کړه او په غېږ کې يې ټينګ ونيولم، ويل زوروره دا څو ورځې نه ښکارېدې او زما د زوی په واده کې هم نه وې، خيريت و؟ ما ويل هو خيريت و د يو دريو ورځو لپاره کابل ته تللی وم. ښه خير، مبارک دې وي، د زوی واده دې په خير تېر سو؟ دا پوښتنه به نو څه وه چې ځان مې په لوی لاس په جنجال اخته کړ. سالو اکا له خوشاليه باغ باغ سو او راته ويې ويل چې تا به هم ډېر ودونه ليدلي وي خو زما د زوی عجيبه واده و، يوه عجيبه خبره پکښې پېښه سوه. که خبر سې نو له حيرانتيا به دې خوله وازه پاته سي. ما ويل خدای دې خير کړي، څه خبره پکښې پېښه سوه؟ له دې سره سم سالو اکا د خپل زوی د واده کيسه بېخي له مرکې څخه راته شروع کړه.

کيسه ښه اوږده سوه، ما غوټه پر له پسې له يوې اوږې څخه بلې ته اړوله خو د سالو اکا کيسه نه خلاصېده. اخر مې ورته وويل چې ستا کيسه ډېره په زړه پوري ده، هغه اصلي خبره چې تا ويل ډېره عجيبه وه، هغه راته وکړه، اوس مې غوټه ډېره درنه ده، نوره کيسه به بيا بله ورځ له خيره سره راته وکړې. سالو اکا وخندل، ويل ته ودرېږه زوروره دا دی اوس اصلي خبري ته راځم. تر نيم ساعت پوري يې بيا هم نه هغه خبره راته وکړه او نه د واده کيسه خلاصه سوه.

زما بېچاره دا خواري په پيښکه وه چې يو مې غوټه ډېره درنه وه او بل نو ستړی هم وم، په تېره بيا پښې مې ډېري وچې سوي وې. سالو اکا ته مې وويل چې زه اوس ډېر ستړی يم، هغه عجيبه خبره ژر راته وکړه، ماپښين به له خيره سره نوري خبري کوو. ده ويل ته ودرېږه زوروره اوس اصلي خبري ته راځم، تر اوسه خو مې يوازې د مرکې کيسه درته کوله. تر دې وروسته يې بيا خپله کيسه پسې وغځوله. په دې وخت کې مې داسي احساس کړه چې کميس مې د شا له خوا ټول لوند سوی دی، کله چې مې غوټې ته لاس وروړ نو پوه سوم چې په هغه کې ټوله واوره (يخی) ويلې سوې دی.

سالو اکا ته مې وويل چې ډېر ستړی يم او ډوډۍ مې هم نه ده خوړلې، زما ستا سره وعده ده چې ماپښين زه خپله ستا کورته درځم، ټوله کيسه به راته وکړې. سالو اکا په خندا وويل چې زوروره، زه چې ستا غوندې ځوان وم په ستړيا او لوږه کې مې ګرد سره چورت هم نه واهه، ته ودرېږه اوس اصلي خبري ته راځم.

له سره تر نوکانو پوري په خولو کې لوند خيشت سوم، پر سترګو مې تياره راتله، نور نو په ولاړې نه سوای درېدای، اخر مجبوره سوم چې کښېنم. زما له کښېناستو سره سم سالو اکا له جېبه د نسوارو دبلی (قطی) را وايست، ښه غټه کپه نسوار يې خولې ته واچوله او خپلې کيسې ته يې دوام پسې ورکړ. نور په ځان نه پوهېدم چې سالو اکا څه راته وايي، بس يوازې مې ښه، ښه، ورته ويل. سالو اکا يو څو ګامه ګوښه سو ويل ته لږ صبر وکړه زه به دا نسوار تو

(توف) کړم، ته مه ځه چي اوس اصلي خبري ته رارسېدلی یم. سالو اکا چي مخ بلي خوا ته وګرځاوه، نو ما وخت غنیمت وګاڼه، دوې پېښې مي خپلي وې، دوې مي نوري پور کړې او په یوه منډه مي ځان کور ته ورساوه.

# ما پوهنتون نه دی ویلی

په یوه مجلس کي یو ځوانکی ناست و چي ټولو ډاکټر صاحب ورته ویل، څنګ ته ناست ملګري یې ورته وویل چي ډاکټر صاحب زه دا څو کاله کېږي چي قبضیت لرم. ده هم بې له دې چي لږ تر لږه د ناروغ پر ګېډه لاس راتېر کړي له جېبه یې کتابچه را وایسته او هغه ته یې یو ډول څاڅکي او دوه ډوله شربت ور ولیکل.

تر دې وروسته ناروغ موږ ته مخ راواړاوه، ویل دا ډېر ښه ډاکټر دی، زده کړې یې په امریکا کي کړې دي. له دې سره سم لکه موټر چي ټکر سي چا پر نس، چا پر سر، چا پر تشي او چا پر ملا لاسونه ونیول، هر یوه ویل چي ډاکټر صاحب زه هم چندان جوړ نه یم. ډاکټر صاحب هم چاته (نې) نه ویل، ټولو ته یې ښه په ورین تندي نسخې ور ولیکلې چي ماته یې هم د اعصابو د ارامېدو لپاره دوه ډوله شربت را ولیکل. په مجلس کي یو سړی چي خلکو انجنیر صاحب ورته ویل، له ډاکټر څخه وپوښتل چي وبخښئ تاسي د امریکا کوم پوهنتون ویلی دی؟ ډاکټر ورته وویل چي ما اصلاً پوهنتون نه دی ویل، بلکي په پېښور کي مي د لومړنیو مرستو درې میاشتنی کورس ویلی دی. دا چي په کورس کي مو استادان امریکایان ول نو زه وایم چي په امریکا کي مي درس ویلی دی.

سهار مي د نوموړي ډاکټر شربت وڅښل چي سمدلاسه مي سر ورسره درووند سو، ایله دومره مي وکړه چي ځان مي د خوب بستر ته ورساوه. ما چي ویل یوه سترګه به مي لا نه وي خوږه کړې خو مور مي راغله ویل زویه کښېنه د غرمې د ډوډۍ وخت دی. غوښتل مي سترګي خلاصي کړم خو نه کېده، غوښتل مي راولاړ سم خو چي هر څه مي وکړه نه سوای پورته کېدای، یو عجیبه حالت و، روغ جوړ وم، یوه ځای مي هم درد نه کاوه، د خلکو خبري مي اورېدې، ما هم خبري سمي کولای سوای خو له ځایه نه سوای پورته کېدای. مور ته مي وویل چي زما ډوډۍ خواته نه کېږي. ماښام مي بیا مور راغله ویل زویه کښېنه ماښام دی، ما ورته وویل چي ماښام مي له انډیوالانو سره تر نا وخته بانډار کړی دی، بې خوبه سوی یم، پرې مي ږده چي خوب وکړم. سهار مي بیا مور راغله ویل کښېنه، خو زه بیا هم نه سوای پورته کېدای. مور مي ویل ناروغه یې او که چا کوم نشه یي شی درکړی دی؟ ما ورته ویل چي نه بیخي جوړ تیار یم، بس یوازي خوب راځي.

غرمه هم د ولاړو نه وم. ما پښین مي وروور رکشه راوستل او زه یې یوه ډاکټر ته بوتلم. ډاکټر وکتلم او معاینات یې راته ولیکل، د معایناتو په نتیجه کي یې لیکلي ول چي زه ملاریا یم. د ملاریا چي مي واورېدل نو سمدلاسه مي پر

سر نړی درد سو.

ډاکټر ته مې د اعصابو د ارامېدو درمل ورښکاره کړل. هغه چې درمل وکتل نو اسمان ته یې ټوپ وهل، ویل دا دوا کوم احمق درکړې ده؟ما ویل نه یې پېژنم. ډاکټر د ملاریا درمل راکړل ویل له دې درملو سره خامخا ښه کېږې. پـه لاره کې مې د ملاریا او اعصابو د ارامېدو درمل دواړه ایسته واچول، له هغه مهال راهیسې ځو کاله کېږي چې بیا نـه یـم ناروغه سوی.

# زه له ژرندي فارغه سوی يم

دا غونډه هغه افغان ډاکټر رابللې وه چې د لوړ فشار نوی علاج يې موندلی و. په غونډه کې د نړيوالو روغتيايي سازمانونو استازيو، د ملګرو ملتونو د نړيوال روغتيايي سازمان استازي، د افغانستان د عامې روغتيا وزير، مدني ټولنو استازو، طبي ډاکټرانو، بهرنيو ډيپلوماټانو او ګڼ شمېر خبرياﻻنو برخه درلوده.

د غونډې وياند وويل: اوس هغه علمي شخصيت ته بلنه ورکوو چې د يوې وژونکې ناروغۍ يو ډېر ساده او موثر علاج يې موندلی دی. دا علمي شخصيت ډاکټر سلطان سوداګر نومېږي، هيله ده چې ستيج ته تشريف راوړي او تاسې يې په وياړ چکچکې وکړئ.

ډاکټر سوداګر چې تر ستيج پورې د غونډې د برخه والو په تودو چکچکو بدرګه سو، داسې وويل: تاسې ته معلومه ده چې ډاکټران له پوهنتون څخه فارغه کېږي خو زه له ژرندې څخه فارغه سوی يم. په دې مانا چې زه د پرش کاله پخوا يو ژرنده ګړی وم، خو په کوچنيوالي کې مې په مسجد کې څه ناڅه ليک لوست زده کړی و.

کله چې افغانستان ته روسان راغلل نو ما په پېښور کې د لومړنيو مرستو يو شپږمياشتنی کورس وواېه. څرنګه چې زموږ په کلي کې يو څه ارامي وه او خلک يې نه وه کډه سوي نو زه ولاړم هلته مې يو کلينيک جوړ کړ چې پر جنګي ټپيانو سر بېره به مې نسايي او ولادي ناروغان هم تداوي کول. ډېر جراحي عمليات مې هم وکړل چې د خدای فضل دی ډېری يې برياليي سول، دا چې د چا به اجل پوره و هغه نو د خدای پاک کارونه دي.

په دې وخت کې د مجلس حاضرينو شور او زوږ جوړ کړ، يوه وويل: بې شکه! دې ته نو نابغه وايي، په ژرنده کې هم داسې استعدادونه پيدا کېږي چې د پوهنتون فارغين څه چې استادان يې هم سيالي نه سي ورسره کولای.

ډاکټر سوداګر پسې زياته کړل: کله چې زه کابل ته راغلم نو تر يو لړ څېړنو وروسته راته معلومه سوه چې په نړۍ کې هر کال په زرګونو خلک د ويني د لوړ فشار له امله مري. ځکه نو زه په دې هڅه کې سوم چې د دې خطرناکې ناروغۍ علاج پيدا کړم، تر ډېرو طبي مطالعاتو او څېړنو وروسته برياليی سوم چې د ويني د لوړ فشار يو ډېر ساده او موثر علاج پيدا کړم.

ما لومړی د فشار لوړېدو لاملونه وڅېړل. دلته افغاني او بهرني ډاکټران تشريف لري، دوی زما په خبره ډېر ښه پوهېږي چې د لوړ فشار يو ستر عامل خفګان دی. ډېر ناروغان چې کابل ته راسي نو د نابلدۍ له امله د اودس مات لپاره مناسب ځای نه سي موندلای. زما کلينک په داسې يوه ځای کې دی چې شا و خوا يې ټول د چای جواب ځايونه

دي، ناروغان به ښايي ډېري اند ښنې ولري خو ما هڅه کړې چي زما ناروغان د اودس ماتي له امله هيڅ اند ښنه و نه لري.

ددې تر څنګ له ناروغ څخه ډېر لوړ فيس اخلم، که بيا يې هم فشار ټيټ نه سو نو ډېره قيمتي دوا ورته ليکم او هغه هم داسي دوا چي زما له شخصي درملتون پرته بل ځای نه پيدا کېږي. ناروغ مجبور دی په ټول ښار کي وګرځي چي ايله هغه درملتون پيدا کړي، له دې کار څخه مي هدف دا دی چي ناروغ پلی وګرځي او ورزش وکړي. که بيا يې هم فشار ټيټ نه سو، نو دا وار ښه ډېر معاينات ورته ليکم او خپل لابراتوار ته يې استوم. لابراتوار مي د يوه رستورانټ څنګ ته دی چي هلته شپه او ورځ د واده محفل وي او د موسيقۍ اواز يې تر ډېر ليري ځايه پوري اورېدل کېږي. دا کار ددې لپاره کوم چي د ناروغ خفګان لږ کم سي. د لابراتوار کارکوونکو ته مي ويلي دي چي تر پنځه سوه (سي سي) کمه وينه دي نه ځني اخلي. په دې کار کي مي هدف دا وي چي د ناروغ وينه لږ سي، ځکه چي کمخوني د ويني فشار راټيټوي.

په دې وخت کي يوه خبريال وپوښتل: که له دې سره سره يې د ويني فشار ټيټ نه سي بيا څه کوئ؟ ډاکټر سوداګر يې په ځواب کي وويل: بيا يې نو په خپل شخصي روغتون کي بستر کوم. زما د روغتون د کوټې کرايه تر نورو روغتونونو درې برابره لوړه ده، بس نو هر څه يې همداسي درو اخله. که څه هم عمليات ته اړتيا نه وي خو زه يې يو ځای ورڅيرم، کله چي ناروغ رخصتېږي نو زموږ د روغتون کارکوونکي ښه درنه شيريني ځني اخلي، دا شيريني داسي حتمي ده لکه زما فيس. ناروغ ته وايم چي بايد څو واره نور هم راسي او که را نه سي نو تر دې به په ډېرو خطرناکو ناروغيو اخته سي. ناروغ مجبور دی چي په هر پړاو کي هم دغومره ډېري منډې وکړي او هم دغومره ډېري پيسې ولګوي.

يوه بل خبريال وپوښتل: په دې ډول خو ناروغ ته يوازي د پيسو تاوان رسېږي نو د پيسو د تاوان يې د ويني له فشار سره څه؟ ډاکټر سوداګر په خندا وويل: د پيسو تاوان د ويني له فشار سره مستقيمي اړيکي لري. کله چي انسان ډېر مايعات ضايع کړي نو فشار يې ټيټېږي، لکه خواګرځی، نس ناستی او خولې کول. کله چي يو څوک ډېر ناڅاپه د پيسو تاوان ووينې نو خولې ورباندي راماتي سي، کله چي يو څوک بېوزله سي نو د موټر کرايه به نه لري، بيا نو مجبوره دی زيات پلی وګرځي او د روزۍ پيدا کولو لپاره درانه کارونه وکړي چي په دې ډول يې هم د وجود غوړ ويلي کېږي او هم زيات خوله کوي. د انسان د وجود مايعات د ويني په فشار کي مهم رول لري. کله چي د انسان د وجود مايعات کم سول نو فشار يې خامخا ټيټېږي. يو بېوزله سړی نه د علاج وس لري او نه يې په قوي خوړو وس رسېږي، نو هغه دی چي د وجود مقاومت يې سو که سو که کمېږي او ناروغ په داسي ناروغيو اخته کېږي چي له امله يې وجود اوبه ضايع کوي. د انسان د وجود اوبه معمولاً د نس ناستي، خواګرځي او خولو له لاري ضايع کېږي چي

ددې هدف لاس ته راوړلو لپاره لازمه ده ناروغ په نس ناستي، ملاریا، لویې تبې، بروسلوز او یا بلې داسي ناروغۍ اخته سي چي لوړه تبه لري.

ما د درملني په هر پړاو کي دې ټکي ته پام کړی چي ناروغ باید مایعات ضایع کړي، مثلاً زه یوازي په اوړي کي ناروغان ګورم، په ژمي کي په اروپا کي اوسم. زما په کلینک، روغتون، درملتون او لابراتوار کي نه بادپکه او نه هم ایرکنډېشن سته، که تاسي زما ناروغان د درملني په جریان کي ووینئ نو له سره تر نوکانو پوري په خولو کي ډوب وي.

**یوه بل خبریال و پوښتل:** فکر نه کوئ چي ناروغ د یوې ناروغۍ د درملني پر ځای په یوې بلې ناروغۍ اخته کوئ؟ ډاکټر سوداګر وویل: دا خبره سمه ده چي ناروغ د یو څه مهال لپاره په یوې بلې ناروغۍ اخته کېږي خو ددې علاج په نتیجه کي له ټولني څخه د ډېرو خطرناکو ناروغیو ټغر ټولېږي. مثلاً زموږ په ټولنه کي داسي یو دود دی چي یو یې ګټي او شل یې څټي، د ډوډۍ په پیدا کولو کي د کور مشر ډېر رول لري، نو که د کور مشر د خوارځواکۍ او بېوزلۍ له امله له کاره ولوېږي ښکاره خبره ده چي هم به دی خپله او هم به یې اولادونه سخت کارونه کوي. ددې ترڅنګ به یې په غوښو، وریجو، خوږو او غوړو خوړو وس نه رسېږي. هغه دی چي په نتیجه کي یې د کور ټول غړي له هغو ناروغیو څخه خوندي کېږي چي شتمن خلک په اخته کېږي، لکه د ویني لوړ فشار، د زړه حمله، شکره او داسي نور. بله خبره دا ده چي زه هیڅکله لاس تر زنه نه یم کښېناستلی، بلکي تل په دې هڅه کي یم چي د نورو ناروغیو، په تېره بیا ټیټ فشار علاج هم کشف کړم، خو زه فکر نه کوم چي دومره اوږد ژوند به ولرم. زما د علاج په نتیجه کي به د ډېرو ناروغانو د ویني فشار ټیټ او اوږد ژوند به ولري خو له بده مرغه زما فشار به لوړ سي. د خلکو د خدمت له امله مي هیڅ پام نسته چي زه خپله ورځ په ورځ چاغېږم. تاسي ته معلومه ده چي نن ورځ له ډېرو پیسو سره خامخا ژور خفګان ملګری دی، نو کله چي خپل چاغوالي او خفګان ته ګورم داسي فکر کوم چي د ویني فشار به مي خامخا لوړ سي، خو زه ویاړم چي خپل ژوند مي د ولس لپاره وقف کړی او په دې لار کي مرم.

# مست بوډا

د لونګ اکا عمر تر شپېتو کالو اوښتی و، خو په ږیره کي یې ایله یو څو سپین وېښتان پیدا سوي ول. له کومي ورځي راهیسي چي هغه کونډ سوی و، نو په ځان به یې لږ ګوتي وهلې، له ږیري څخه به یې سپین تارونه کښل، ږیره به یې هم لږ کونډۍ کوله او پلاستېکي غاښونه خو یې پخوا لا ایښي ول.

څه مهال چي د لونګ اکا مور، شرنګي تورۍ د لونګ اکا د سمال راوړ، نو هغه د اسي بې واره وخندل چي د پلاستیکي غاښونو پورتنۍ ژامه یې را جلا سوه او نژدې ول چي پر ځمکه را ولوېږي.

تر کوژدې وروسته به لونګ اکا د کلي خلکو پر غوږ واهه چي کوژدنه (نامزاده) نجلۍ یې د لور پر ځای څه، چي ښځي یې د لمسۍ پر ځای ده. بیا به نو ده په ځان نوره هم ګوته وهله، اوتو کړي کالي به یې اغوستل او کله کله به یې عطر هم وهل. کله چي د واده شپې رانژدې سوې نو لونګ اکا نسوار هم پرېښودل او سګرېټ یې پیل کړل، ویل ورک یې کړه نسوار ډېر مردار عمل دی. په اوونۍ دوو کي به ښار ته تلئ او وېښتان به یې په نایي جوړول. برېتونه خو به یې په هرو دوو درو ورځو کي داسي پاک خریل تا چي ویل شکولي یې دي. تر دې وروسته به ځینو ځوانانو په غیاب کي لونګ اکا مست بوډا باله.

د واده په شپه ښځو ویل هلک راولئ چي ائینه مصحف په وکړو. د لونګ اکا مور، شرنګي تورۍ ځان یوې او بلې خواته کاوه، خو د لونګ اکا خوابې په سرو اوښکو ژړل، ویل ولي زما لور تر چا پاته ده، یوازې یې دغه ګناه ده چي پلار نه لري؟ اخر شرنګه تورۍ هم ناچاره سوه چي لونګ اکا راولي.

یوې نجلۍ ناره کړه، ویل هغه دی زوم یې راوست. نجوني یوې او بلې خواته سره ګوښه سولې. لونګ اکا خپلو دوو ځوانانو زامنو تر څنګو نیولی او آئینه مصحف ته یې راوست. په دې وخت کي په ښځو کړکچو (شور) ګډ سو. په تېره بیا نجونو ډېر په زوره زوره خندل، یوې ویل، وی دغه زوم دی؟ د لونګ اکا په باب د ښځو خبرو وار په وار زور اخیست. شرنګه تورۍ له درده ولاړه سوه او نجونو ته یې وویل: ورکي سئ! تاسي زما په زوی ملنډې وهئ، تاسي که ښه یاست دغه سپین ږیری مېړه پیدا کړئ. د شرنګي تورۍ په خبرو نجوني بیا هم غلي نه سوې او ائینه مصحف پیل سو.

تر ائینه مصحف وروسته چي لونګ اکا ولاړېده، نو لکه د الوتکي ټایرونه چي نه ایله کېږي پښې یې نه غوړېدې او نه سوای ولاړېدای، اخیر د هغه یوه ځوان زوی په غېږ کي واخیست او د ناوي خوني ته یې بوت.

د واده په سهار د چایو خوړلو پر مهال چي د لونګ اکا او ناوي خپلوان ناست ول، شرنګي تورۍ یو وار په مسکا د لونګ اکا خواته وکتل او بیا یې د ناوي مور ته وویل: لونګ جان زوی مي که څه هم تر ناوي یو څه مشر دی، خو ډېر

ځوان پاته سوی دی. د ده همزولي چي ووینې ګرد سره پر ملا کړوپ دي او ږیري یې لکه وړی داسي سپیني دي، خو ته و ده ته وګوره له بدو سترګو دي خوندي وي، ږیره یې تکه توره ده. په دې وخت کي ناوي له مخ څخه شال لرې لیري کړ او ویې ویل: وی، موري په توره ږیره یې مه خطاوزه، ما ته را معلوم سو، هیڅ نه دي پکښي پاته.

# انلاین مینه

اجمل چي سهار په دفتر کي خپل ایمیل پانه پرانیسته، نو د لیدا په نوم یو ایمیل ورته راغلی و چي سرلیک یې داسي و: اجل جانه ډېر راباندي ګران يې. د دې سرلیک په لیدو اجمل په غاړه کي برګ د سمال سم کړ، په چورت کي ولاړ چي دا به نو څوک وي؟ زه خو داسي ښکلې ځواني نه لرم چي کومه نجلۍ دي راباندي مینه سي، والله که مي په ژوند کي یاد پړي چي خپلي مور دي له نازه پر مخ مچ کړی هم یم، خو خیر وایي: زړه چي مین سي ښایست نه غواړي. د اجمل خوله له خوشالیه ویړه سوه، پر شونډو يې ژبه تېره کړه او ایمیل يې پرانیست. نجلۍ داسي ورته لیکلي ول:

ګرانه اجمل جانه! تا ته به ډېره حیرانوونکې وي چي زه څوک یم او ته ولي دومره راباندي ګران يې؟ ځکه چي ما تر اوسه تا ته د خپلي میني په باب څه نه دي ویلي او نه تر هغو ما پېژندلای سې چي زه خپله ځان در و نه ښیم، خو خیر وروسته به زه هم ځان در وپېژنم، پرون مي په یوه واده کي ولیدې، نن چي دفتر ته راغلم نو ته مي له یاده هیڅ نه وتلې، تر ډېرو هڅو وروسته مي ستا ایمیل پته پیدا کړه او دا دی ایمیل مي درواستاوه. نوري خبري به په ټیلیفون کي سره کوو، دا زما د موبایل شمېره ده، پام دي وي چي زه او ته یوازي د شپې له لسو تر دوولسو بجو خبري سره کولای سو، خو ګوره تر څو چي ما خپله زنګ نه وي در وهلی ته زنګ مه راوهه.

نن ورځ پر اجمل لکه کال دومره اوږده سوه، هره شیبه به يې ساعت ته کتل خو د ساعت ستن لکه ګرد سره چي ولاړه وي، اخیر تر یوه اوږده انتظار وروسته د شپې لس بجې سوې. د اجمل دوی کور کرایي او ډېر تنګ و، دا چي اجمل مجرد و نو نوره هم ورته ګرانه وه چي یو ګوښه ځای دي له لیدا سره په موبایل کي خبري وکړي، اخیر مجبوره سو تشناب ته ولاړ. د اجمل دوی د کور تشناب پخوانی په اصطلاح انالاګ سیستم و، داسي بد بوی يې کاوه چي د چا پلار لس دقیقې ځان نه سوای ورته ټینګولای، اجمل په تشناب کي لس دقیقې وکتل خو د لیدا زنګ را نه غی، په تشناب کي يې زړه تنګ سو او بیرته را ووت، خو په زړه کي يې وروګرځېده چي داسي نه وي د لیدا زنګ راسي، بیا به څنګه خبري ورسره کوم؟ په همدې هیله څو واره تشناب ته ننووت او بیرته به را و وت. په دې وخت کي د اجمل د مور پام سو چي اجمل تشناب ته ځي او راځي، داسي فکر يې وکړ چي د نس تکلیف ورته پیدا سوی دی، سمدلاسه ولاړه سوه چي له بکس څخه سپېرکۍ راوړي، هغې لا سپېرکۍ نه وه راوړې چي اجمل بیا تشناب ته منډه کړه، یو څو دقیقې په تشناب کي ناست و خو بیا هم د لیدا درک معلوم نه سو. په دې وخت کي د اجمل زړه تنګ سو، غوښتل يې له تشنابه راووزي چي په دې وخت کي لیدا میسکال ورکړ.

اجمل ډېر ژر لیدا ته زنګ ور ووهه، هغې په ټیټ اواز وویل: ګرانه و بخښه چي ډېر انتظار دي وکړ، ستونزه دا ده چي زما مور او ورونه پر ما ډېر پام کوي او که را خبر سول چي زه ستا سره خبري کوم نو پوستکی به مي وباسي، اوس زما مور راغله نوري خبري به سبا کوو د خدای پامان ګرانه.

سبا چي اجمل دفتر ته ولاړ نو د انټرنیټ پاڼه یې لا نه وه پرانیستلې چي د لیدا له خوا میسکال ورته راغی، اجمل چي زنګ ور وواهه نو لیدا وویل: ګرانه بخښنه غواړم د موبایل پیسې مي خلاصي سوې، که زحمت نه وي د موبایل یو کریډیټ کارډ راواستوه چي ډېر ضرور مي په کار دی. اجمل هم سمدلاسه دوکان ته منډه کړه او د پنځو سوو افغانیو په ارزښت یې یو کارډ رانیو او په مسیج کي یې ورواستاوه.

کریډیټ کارډ به نو څه و چي د اجمل لپاره د سرمایي موړک سو، داسي ورځ به نه وه چي اجمل به لیدا ته د موبایل یو کریډیټ کارډ نه ور استاوه. د میاشتي په پای کي یې ټول معاش د لیدا په کریډیټ کارډونو کي تللی و. یوه ورځ چي لیدا اجمل ته د کریډیټ کارډ وویل نو هغه په جیب کي ګوتي ووهلې خو پیسې نه وې ورسره، اخیر یې د دفتر له موټروان څخه پنځه سوه افغانۍ پور کړې او لیدا ته یې کریډیټ کارډ ورواستاوه. اجمل ډېره هڅه وکړل چي لیدا له نژدې ووینې خو هغې به په یوه او بله پلمه ځان خلاصاوه.

یوه ورځ اجمل لیدا ته وویل چي ستا څه ډول هلک خوښېږي؟ هغې ورته وویل چي داسي یو هلک چي ږیره او برېتونه یې خریلي او کاوبای پطلون یې اغوستی وي. سبا چي اجمل کور ته راغی نو مخ یې په خپل برګ د سمال پټ کړی و، بس یوازي یې سترګي ښکارېدې. مور یې وارخطا سوه ویل زویه قربان دي سم په مخ دي څه سوي دي؟ اجمل بیا هم له مخ څخه پټو لیري نه کړ خو پلار یې راولاړ سو او په زوره یې مخ ور لڅ کړ. ګوري چي اجمل ږیره او برېتونه داسي پاک خریلي دي لکه شکولي چي یې وي. پلار یې یوه ټینګه چپلاخه (څپېړه) ورکړل خو مور یې د اجمل ملګرې سوه، ویل خیر دی هلک دی. سبا چي بیا اجمل کور ته راغی نو شین کاوبای پطلون یې اغوستی او د کمیس د مخ تنۍ یې خلاصي پرې ایښې وې، لاکټ یې په غاړه کړی او چیله یې په غوږ کړې وه، بل نو یوه غټه ګوتمۍ یې هم په ګوته کړې وه، بس نو هغه د چا خبره ځان یې ښه یو غوړپ کړی و.

اجمل به هره ورځ لیدا ته ویل چي کله به له نژدې سره ګورو، خو هغې به ډول ډول پلمې ورته کولې. یوه ورځ اجمل لیدا ته شله سو، ویل خامخا به له نژدې سره وینو، هغې ورته وویل چي سمه ده، سبا به د پر فلاني پر چوک سره پیدا کړو، بیا چي هر ځای تلې سره ولاړ به سو. اجمل یاد سوي چوک ته ولاړ او د برق د یوې زړې پایي څنګ ته ودرېد. پنځلس دقیقې وروسته د لیدا زنګ راغی، ویل ګرانه ته چیري یې، زه خو دي نه وینم؟ ته ما وینې کنه؟ ما شنه بوغره کړې او په ښي لاس کي مي یوه پلاستیکي کڅوړه ده، کله چي دي زه ولیدم نو مخامخ راته ودرېږه او یوه سترګه راته وواهه، بس زه به پوه سم چي دا زما ګران دی.

اجمل هم لکه تازي په یوه منډه ځان بوغره والي نجلۍ ته ورساوه او مخ ته یې ودرېد، یو وار یې هغې ته سر تر نوکه ښه وکتل او بیا یې سترګه ورته ووهله. له سترګي سره سم نجلۍ ناري کړې، ویل اې خلکو دې بې شرمه هلک ما ته سترګه ووهله. خلک پر راټول سول او اجمل یې دومره و ډباوه لکه د فقر ډول.

اجمل لکه جنګېدلی چرګ په وینو سور د کور خوا ته روان سو چي په دې وخت کي بیا د لیدا زنګ راغی، ویل څه سوې؟ اجمل خپله ټوله کیسه ورته وکړه، لیدا وویل چي ویش ویش دا ته وې، زما څخه یو څو ګامه ها خوا یو هلک خلکو واهه، ما چي ویل دا به بل هلک وي؟ اوف اوف څومره بد کار وسو، ډېر و بخښه دا نو ټول زما له لاسه، خیر په مینه کي پر انسان دا تکلیفونه راځي، اوس خو مي نو بیخي نه زړه کېږي، هر څنګه چي کېږي باید و دي وینم، هغه د پیرکیو ریړۍ ته راسه، ګوره چي بیا بلي بڼځي ته و نه درېږې.

د اجمل زړه بیا هم صبر نه سو او یاد سوي چوک ته ورغی، کله چي یې لیدا ته زنګ ور وواهه نو د لیدا په ټیلیفون کي هم د هغه ریړۍ والا نارې اورېدل کېدې چي دی یې مخ ته ولاړ و. اجمل چي شا وخوا و کتل نو خپل یو همصنفي کمال یې ولید چي یو پر ځان یې پټو راپېچلی او د ښځي په اواز کي له ده سره خبري کوي.

# بای فرینډ ټلویزیون

درنو لوستونکو ! دا ځل مو د بای فرینډ ټلویزیون له مشر حاجي ډیموکراټ صاحب سره مرکه کړې چې دا دی ستاسي مخې ته یې ږدو:

پوښتنه: څه انګېزه وه چې بای فرینډ ټلویزیون موجوړ کړ؟

ځواب: یاره ورورکیه پسي را تېر سه خبره خو دا ده چې د ډېرو هلکانو او نجونو زړه کورت کورت کېږي چې واده وکړي، ان دا چې هره شپه واده په خوب کي ویني، خو ولورونه دومره لوړ دي چې ما غوندي هر خاکشا و ماصدیق واده نه سي کولای، نجوني خو ښه دي، صبر کولای سي خو د هلکانو بېخي تر وس تېره ده، نو کله چې دغه هلکان له واده کولو څخه ناهیلي سي، بس نو د مکتب نجونو ته په دې هیله په لاره کي ولاړ وي چې ځان ته کومه انډیواله پیدا کړي او که دا نه وي نو خیر دغه یوه شیبه خو یې په خوښۍ تېره سي. یاره که رښتیا ووایم نو ځیني نجوني هم له خدایه یو هلک غواړي، ځکه هغوی خو هم د هلکانو په شان زړه لري او زړه یې غواړي چې یو انډیوال **(Boyfriend)** ولري،خو ستونزه دا ده چې که مور، پلار، ورور او یا بل مشر یې خبر سي نو پوستکی به یې وباسي، همدا دلیل دی چې نجوني هلکانو ته بدرد وایي او یا هغوی په چپلاخو (څپېړو) او یا څپلکو وهي، اوس نو پسي را تېر سه د دغه ډول هلکانو شمېر ورځ په ورځ ډېرېږي او هره ورځ په زرګونو ځوانان د خپلي میني له امله پر مخ څپېړي خوري. دغه ډول د نجونو حقوق هم تر پښو لاندي کېږي، ځکه چې د نجلۍ یو هلک خوښ وي خو د مور او پلار له ډاره څه .نه سي ویلای

بله ډله هغه هلکان او نجوني دي چې بېچاره ګان د خپل لوړ ذوق او فیشن قربانیان دي. دوی غواړي چې د پر مختللیو هیوادونو په شان ښه لباس واغوندي او تل په دې چورتونو کي غرق وي چې په نتیجه کي یې د پوهنتون په کانکور کي ناکامه او که کوم یو یې د نقل په زور بریالي هم سي نو تر یوه سمستر وروسته ناکامه او له پوهنتون څخه شړل کېږي، که څه هم په دې ورځو کي راډیوګاني او تلویزیونونه لکه تور توت دومره ډېر دي، خو د مجردو هلکانو او پېغلو نجونو ژوند ته د هیچا هم پام نه دی، بس نو همدا بای فرینډ ټلویزیون دی چې د دوی له غمه یې پر ځان شپه او ورځ یوه کړې ده او کار کوي.

پوښتنه: پر تلویزیون مو ولي د بای فرینډ نوم کښېښود؟

ځواب: ګوره ته خو خبریال هم یې او بیا هم سر نه خلاصوې، ستا لکه چې دا د جوغندر دی که جنډر دی، دې خبري ته پام نسته؟ باید دې خبري ته موږ ټول پام وکړو، بله خبره دا ده چې وایي (لیډیز فرسټ) یاني اول حق د ښځو دی، اول باید د نجونو غم وخوړل سي یاني یو انډیوال یا بای فرینډ ورته پیدا سي، هلکان خو چې هر ډول وي یو ځای د

ځان چاره کوي، باید د نجونو غم وخوړل سي.

پوښتنه: ولي مو د ګرل فرینډ نوم نه غوره کاوه؟

ځواب: یاره انډیواله دا نوم خو زما خپله هم ډېر خوښ دی، خو کله چي په افغانستان کي د این جوګانو مینجوګانو، ډیموکراسۍ او ښځو د حقوقو بازار تود سوی دی نو یوه خبره ډېره کېږي چي لیډیز فرسټ) یاني اول حق د ښځو دی. ځیني هلکان خو لا دا خبره هم کوي چي (لیډیز فرسټ، د ډاګ فالوز، یاني ښځي د مخه او سپي ورپسې) بس زما هم دا خبره خوښه سوه او د تلویزیون لپاره مو د بای فرینډ نوم غوره کړ.

پوښتنه: تاسي څه ډول خپروني لرئ، که د بېلګي په ډول یوه یې راته ووایاست؟

ځواب: زموږ د یوې خپروني نوم دی (اوف اور مي واخیست). دا لړۍ د هغو بېچاره هلکانو او نجونو لپاره ده چي تر اوسه پوري یې زړه باد نه دی وهلی یاني کوم انډیوال اویا انډیواله نه لري یا هغه هلکان او نجوني چي یو هلک یا نجلۍ یې خوښه وي او غواړي چي واده ورسره وکړي خو مور او پلار یې اجازه نه ورکوي. موږ ددې لړۍ په یوه خپرونه کي له یوې نجلۍ او بله کي له یوه هلک سره مرکه کوو. د مرکې یوه برخه د هلک د خپل ژوند معلومات وي، مثلاً هلک د څو کالو دی، څومره زده کړي یې کړي، څه کار کوي او اقتصادي حالت یې څنګه دی. د مرکې بله برخه بیا داوي چي د هلک څنګه نجلۍ خوښېږي، زده کړي یې څومره وي، سترګي، پزه، شونډي، خوله، وېښتان، ونه او د پوستکي رنګ یې څنګه وي، دغسي د وجود نوري ځانګړتیاوي یې در واخلک، البته له نجلۍ سره مرکه به هم دغه ډول وي. هغه څوک چي د غه ډول هلکان او نجوني یې خوښېږي، هغوی موږ ته زنګ وهي، موږ یې راغواړو او سره انډیوالان کوو یې، که زړه یې غوښتل چي واده سره وکړي واده کوي او که یې واده نه کاوه هغه دی خپله انډیوالي به کوي او په نیمه دنیا کي به چورت نه وهي.

پوښتنه: که ددغو هلکانو او نجونو مور او پلار په دې باب مخالفت کاوه بیا څه کوئ؟

ځواب: د بشري حقونو کمیسیون دي ژوندی وي، له هغوی څخه مرسته غواړو.

پوښتنه: نجوني او هلکان خو ډېري ستونزي لري، ایا تاسي به څومره وکولای سئ چي د دوی ستونزي اواري کړئ؟

ځواب: ستاسي خبره سمه ده، موږ د دوی نور پروګرامونه هم لرو، مثلا هغه هلکان او نجوني چي د پوهنتون په کانکور کي ناکامه سوي وي، د هغوی لپاره د ټلوېزون له لاري د سندرو ویلو، نڅا کولو او کومیډي سیالۍ او کورسونه لرو، ددې تر څنګ د ټلویزیون له لاري د سینګار کولو سیالۍ هم لرو. هغه څوک چي په دغه سیالۍ کي بریالي کېږي د هغوی لپاره کورسونه جوړوو. هغه هلکان او نجوني چي له دغه کورس څخه په لوړه درجه فارغه

کېږي د سينګار په برخه کي يې د زده کړې لپاره بهرنيو ملکونو ته لېږو.

پوښتنه: تر اوسه پوري څومره خپل هدف ته رسېدلي ياست؟

ځواب: کله چي د بن د تړون له مخي په افغانستان کې بدلون راغی، نو ورسره سم د ډېرو نجونو د سر په رنګونو کي بدلون، په لمنو کي لنډون او په پښو کي پطلون راغی. لږ وخت نه و تېر سوی چي د هلکانو او نجونو د فيشن تر منځ ګډون راغی، ياني هلکانو او نجونو ورته جامې اغوستل او سينګار کول پيل کړل. کله چي په ټولنه کي دغسي اوښتون راغی نو د ډېرو هلکانو او نجونو تر منځ د زړونو پيوستون راغی. همدا وجه ده چي ورځ په ورځ هلکان انډيواله او نجوني ځان ته انډيوال پيدا کوي چي البته موبايلونو دغه لاره نوره هم رالنډه کړه، موږ چي کومې شمېرې له ځان سره لرو نو ډېرو نجونو او هلکانو زموږ د خپرونو له برکته انډيوالان پيدا کړي او خوښ خوشاله دي.

# بوش بازار

زموږ رئیس یونس خان چي نن دفتر ته راغی، نو نوی بلوز (کمیس) یې اغوستی و، هرڅوک چي به یې ولید، نو خوله به یې ویړه سوه او ورته وبه یې ویل: ته ماته وګوره زه په دې بلوز کي څنګه ښکارم؟ ده به اکثره وخت لیلامي کالي اغوستل، کله چي به چا د لیلامي کالیو د ارزانۍ خبره وکړه، نو ده به ورته وویل: ګوره د اسي فکر و نه کړې چي زه سخت مټکور یم او پر نویو کالیو مي پیسې نه زړه کېږي، اصلا خبره د ګرانۍ او ارزانۍ نه، بلکي د موډ او فېشن ده. تاسي خو پر کالیو ډېري پیسې ورکوئ، خو په موډ پسي یې نه ګرځئ. زموږ په وطن کي ستونزه دا ده چي موږ د موډ او فېشن نندارتون نه لرو او خیاطان خو مو له نوي موډه ګردسره نه دي خبر، بس هماغه پخوانۍ بابولالي وایي.

یونس خان خپل نوی بلوز پر خېټه راکش کړ او پسي زیاته یې کړه: دا بلوز نوی موډ سوی دی، تاسي یې وګورئ نوی کال پر لیکلی دی، یوازي درې میاشتي کېږي چي دغه موډ راوتلی دی، درې میاشتي ښخي لږ وخت دی. یاره زه خو وایم که دا لیلامي بازارونه نه وای، نو موږ به په پېړیو پېړیو هم له نوي موډه نه وای خبر سوي. په دې وخت کي یې بیا خپل بلوز ته وکتل او پر خېټه یې نرم لاس تېر کړ: دا مي پرون په بوش بازار کي رانیو، بوش دي ژوندی وي، که دی نه وای، نو اوس به یې په افغانستان کي نه بازار وای او نه د اسي خوندور لیلامي کالي. پرون د نوي کال ډېر شیان بوش بازار ته راغلي ول، ډول ډول دریشۍ، کمیسونه، بوټونه او د اسي نور شیان. ما هم توکل یاد کړ او د دې میاشتي ټوله معاش مي پر لیلامي کالیو ورکړ، خو په ټولو کي مي دا بلوز ډېر خوښ سو.

په دې وخت کي یې ماته مخ راواړاوه او ویې ویل: یاره پرون مي په بوش بازار کي ډېري ښې موزې ولیدې، دومره اوږدې وې چي په پښو کړې دې وای، نو پتلون اغوستلو ته هیڅ اړتیا نه وه، یو متل دی وایي: تشه لاسه ته مي دښمن یې! که پیسې راسره پاته سوې وای، نو اوس به په هماغه موزو کي ستاسي مخ ته ولاړ وای. دلته فیشني سړی چندان ګوزاره نه سي کولای، زموږ خلک د نوي عصر له موډ او فېشن څخه ډېر لیري دي، خو څه وکړو کاشکي خارج ته مو نصیب سوی وای چي هلته مو تازه تازه موډونه لیدلي وای.

د یونس خان ناره خدای واورېده، څو ورځي وروسته یونس خان او زه د لسو ورځو لپاره په یو رسمي سفر اروپا ته ولاړو. کله چي هلته ورسېدو، نو بکسونه مو په مېلمستون کي پرېښوول او موږ راووتو چي لږ ښا و خوا وګرځو. یو څو ګامه چي ولاړو، نو د ښا له خوا یو چا راپسي ناري کړې، موږ چي ورته وکتل یوه سړي سپی په غېږ کي نیولی او زموږ خوا ته یې منډې راوهلې. د دې ناري په اورېدو نورو خلکو هم سپیان په غېږ کي نیولي، له کورو راووتل او پر موږ راټول سول. هر یوه به لومړی د خپل سپي پر سر په ډېر ناز لاس راتېر کړ او بیا به یې موږ ته راواړاندې کړ. زموږ لویه ستونزه دا وه چي د دوی په ژبه نه پوهېدو، وروسته مو لکه ګونګیان په اشارو خبري پیل کړې، خو بیا مو هم

سر سره خلاص نه سو. خلکو زما سره چندان کار نه درلود ، بس یوازي پر یونس خان راټول ول. هرڅومره چي مو له ځانه سره چورت وواهه، بیا هم پوه نه سوو چي خلک څه وایي؟

یونس خان داسي فکر وکړ چي ښایي دا خلک غواړي خپل سپي پر موږ خرڅ کړي، نو د دې لپاره چي ځان له دې جنجاله خلاص کړي، له یوه سړي څخه یې سپی واخیست او هغه ته یې یو سلګون نوټ ونیو. د سپي خاوند له درده تک سور واوښت، سپی یې د یونس خان له لاسه وکیښ او یونس خان یې په درد په اوږه وواهه. له دې سره سم خلکو تر خپل منځ څه (ګړي مګړي ) سره وویلې او یو په بل پسي خپلو کورونو ته ولاړل.

کله چي میدان خالي سو ، نو موږ هم پښې سپکي کړې او د کالیو خرڅولو یوې مغازې ته ولاړو. په سودا اخیستلو مو لا شروع نه وه کړې چي د مغازې منېجر څنګ ته ناسته پیشو په غېږ کي ونیوله او یونس خان ته یې ورمخ ته کړه. پیشو هم ټوپ کړه او د یونس خان پر اوږه باندي کښېناسته. یونس خان ته درد ورغی او پیشو یې له اوږې څخه لیري کړه. له دې سره سم هغه سړي خپله پیشو راپورته کړه، په زړه پوري یې ټینګه ونیوله او بیا یې یونس خان ته په خپله ژبه یو څه وویل، خو دا چي یونس خان د هغه په خبره پوه نه سو ، نو سړي ته درد ورغی او یونس خان یې پر مخ یوه داسي کلکه څپېړه وواهه چي ترمخ یې اورونه ووتل. په دې وخت کي د مغازې ټول کارکوونکي او رانیوونکي راټول سول، موږ په خپله او دوی په خپله ژبه خبري کولې، موږ هیڅ نه پوهېدو چي دوی زموږ څخه څه غواړي؟ بس بله چاره مو ونه لیده او له مغازې راووتو. په دې وخت کي یونس خان وویل چي زه وږی یم، راځه یوه رسټورانټ ته ولاړ سو او ډوډۍ وخورو.

دواړه یوه رسټورانټ ته ولاړو او د ډوډۍ فرمایش مو ورکړ. نه پوهېږم چي ډوډۍ ډېره خوندوره وه او که موږ ډېر وږي سوي و ، یونس خان خو داسي غټي غټي ګولې پورته کولې، هغه د چا خبره لکه د غله وار. په دې وخت کي یو سړی له بیزو سره زموږ مېز ته ودرېد ، بیزووان لا خوله په خبرو نه وه پوري کړې چي بیزو مېز ته راوختله او د یونس خان مخ ته پروت برګر یې په خوله کړ. یونس خان له درده بیزو په څنګل وواهله او د مېز له سره یې شیوه کړه. بیزو ( کیغ کیغ ) جوړ کړ او یونس خان ته یې پر څټ منګولې ورولګولې. په رسټورانټ کي غالمغال جوړ سو ، د رسټورانټ کارکوونکي او مېلمانه راټول سول، ټولو یونس خان ته د ملامتۍ ګوته نیوله، خو څرنګه چي موږ د هغوی په ژبه نه پوهېدو ، نو په اصلي ستونزه هم پوه نه سوو. یونس خان چي نور نو د خلکو له سپیانو ، پیشیانو او بیزوګیانو څخه تنګ سوی و ، یو سوړ اسویلی وکیښ او ما ته یې وویل: یاره زما څخه خو یې د اروپا موډ او فېشن هېر کړ، زه نه پوهېږم چي دا خلک ولي ما نه پرېږدي؟ دا حیوانان په ما پوري څه اړه لري؟ ایا زه د حیواناتو ډاکټر یم؟

په دې وخت کي اټکلي یو افغان راپیدا سو ، موږ د افغان په لیدو دومره خوشحاله سوو چي په کالیو کي نه ځایېدو ، ان دا چي پر یونس خان هم خپل بلوز تنګ سو. افغان په خندا راغی زموږ تر څنګ کښېناست، تر سترګې

مسي وروسته ده هم یونس خان ته لږ په حیرانتیا وکتل او ویې پوښتل: ښه تاسي کیسه وکړئ چي دلته څنګه راغلاست او څه کار کوئ؟

یونس خان چي ډېر یې زړه تنګ سوی و، د هغه خبره ونیوله او ویې ویل: دا کیسه به وروسته درته وکړو، ته اوس دا راته ووایه چي دې خلکو څه ویل؟ یوازي دا کیسه نه ده، موږ نن دوه ځله نور هم په دغسي بلا اوښتي یو. افغان په خندا د یونس خان خوا ته وکتل او ویې ویل: دا خلک هم نه دي ملامت، اصلي ستونزه ستاسي په بلوز کي ده، ځکه چي دا ډول کمیسونه دلته د حیواناتو د یوه شرکت یونیفارم یا ځانګړي کالي دي، دا شرکت حیوانات هم خرڅوي او هم یې بیمه کوي، مانا دا چي د یوه حیوان ترخرڅ وروسته هم د نوموړي حیوان غم او درد په دوی پوري اړه لري، اوس چي خلکو ستا دغه ډول بلوز ته وکتل، نو دا سي فکر یې وکړ چي تاسي د دې شرکت کارکوونکي یاست.

پـای

# د لراوبر برېښنايي کتابتون

**قدرمنو لوستونکو !**

تاسو کولای شئ د لراوبر ویبپاڼي په برېښنايي کتابتون کي زیات شمېر ارزښتناک او په زړه پوري آثار په خپل تفریحي وخت کي مطالعه کړئ .

د لراوبر اداري د برېښنايي کتابتون څانګه ستاسو لپاره د لاندینیو موضوعګانو اړوند آثار پر لیکه کوي :




- **اسلام او مذهب**
- **ساینس او تخنیک**
- **سپورټ او روغتیا**
- **تاریخ او سیاست**
- **هنر او ادبیات**
- **دماشومانو لپاره**
- **بېلابېل آثار**

**www.Larawbar.net/library**